# ځرک کلنۍ

ځرک ۱۲ کلنه شوه!



یوولسم کال - پرلپسې ۸۵ ګڼه - مرغومی ۱۳۹۳ ل، ربیع الاول ۱۴۳۶ ق - دسمبر ۲۰۱۴ م

ماهنامه وزین جهادی ځرک (۱۲) ساله شد

ځرک نن او پرون

له ځرک سره یوولس کلنه یارانه

د آزادۍ او مقاومت ځرک

فرهنګي جهاد!

ګرګهایي که در افغانستان مصئونیت قضایي دارند!

د اردو عسکره! چا سره جنګیږې؟!

له محترم شیخ الحدیث مولانا عبدالرشید شینواري سره د ځرک ځانګړې مرکه

پاخه اودرانه بریدونه او لالهانده اداره!!

د ۲۰۱۴ کال، ځینې نړیوالې مهمې پېښې!

د معاصر صحافت رول ته کتنه

دسیاسي چارو شنونکي او مبصر ښاغلي خپلواک:

که نظامی فشار نور هم جاري و ساتل شي دامریکا د اړو شتون او کابل رژیم بقا دواړه ناشوني ګرځي



په افغانستان کې، د امریکایانو ځاني او مالي تلفات

# څرک

**علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه**



يوولسم کال – پرلپسې۸۵ ګڼه – مرغومی ۱۳۹۳ل،
ربیع الاول ۱۴۳۶ق-دسمبر۲۰۱۴م

## امتياز :

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

## ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلدارې |
| امريکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ يورو |
| يوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ |
| | ۲۵ کلدارې |

## يادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

## پته :

تخنيکي چارې : عابد مجاهد

کابل : دڅرک دفتر

srak_111@yahoo.com



بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# څرک ۱۲ کلنه شوه

دادب اوقلم ، پوهان وايی دیوې کامیابه اوبریالی رسنی اونشریي ، یوه مهمه ځانګړتیا اونښه داده چې نشراتي لړۍاوبهیر یې تکنی اوځنډنی نه وي ، خپل مینه وا اولوستوا یې په خپل وخت پاللي وي اوبله دکارخبره داده چې دخپروني عمر اومنګ یې اوږد اوله ډیرو ټیټو اوهسکو بریالی راوتلی وي .

دڅرک مجلې علمي اوادبي تو او ارزونه به ښاغلولوستوالو ته پریږدو ، خو دایوحقیقت ډیرځلنداوبرالا دی ، چې څرک مجلې ، کابو ۱۲ کاله وړاندې په داسې شرایطو او حالاتوکې څرک وواهه ، چې په هیواد دامریکاپه مشری دنړیوا طاغوت دیرغل ناولي پنجي تازه خښې شوي وي ، په افغان ولس باندې دوحشت اوبربریت تورماښام خپل غملړلی څادر خپور کړی وو ، ددیمکراسی دروغژنې اومستبدي پروژي شرمخانو دافغان ولس په حرمت اواقدارو بلوا کډه کړې وه ، دهرهغه افغان په مرۍ دصلیب چاړه ایښود شوې وه چې داسلام او خپلواکۍ ناره اوروحیه له ځان سره لرله ، دهوایي ناترسه بمباریو اوپه تورو شپوکې دچاپو اوجهنمي زندانونو ته دمظلومو افغانانودرسولو انسانیت بوژنوکي لړۍ په تونډی روانه وه ، له بل لوري دافغان ولس څخه دخپل فریاد اومظلومیت دپورته کولو حق غصب شوی وو ، میډیا اورسنی که خارجي وي که داخلي ، له یوې مخې امریکایي ډالرو زرخریدي کړې وي ، قلموالو ، سیاستوالو اودبشري حقوقو مدعیانوته صرف امریکایي کتي او منافع مهمي اودهغوپه رناکې یې تحلیل اوقضاوت لاره .

نوپه دغسې مستبدو حالاتو اومسلطې امریکایی خپسکې کې ، دهیواد یوشمیربادرکو اومجاهدو قلموالو ، دیوديني اوملي احساس له مخي میدان ته راودانګل ، داسلامي امارت په مشری دافغان ولس دجهاد غیرت اومیړانې دحماسو دځلولو اوددوئ دمظلومیت دپورته کولو په موخه یې دڅرک مجلې په شکل کې یوه وړوکي هڅه پیل کړه |

څرک مجله ، چې په اخلاص اوسټره نیت شروع شوې وه ، اللّه تعالی یې په کمزورو هلوځلو ، لیکنو اونشراتي سلسلې کې لوی اثر، پایښت اوبرکت وغورځاوه ، په هیواد اوله هیواده بهر یې زرګونه مینه اولوستوا پیداکړ ، داسلام ددښمنانو دهرډو غلیمانه دامونو اوحربوپه شتونکې یې هره میاشت ،په خپلو پاڼوکې دجهاد حماسي ، دیرغلګرو د رسوایي اوشکست له مستندوجریانونواو داستانونوسره په ټاکلي نیټه او مها نشراو وړاندې کولې .

درنو لوستوالو داچې څرک ستاسې په مرسته ، دعاګانو اوځانګړې مینه ، دادی ۱۲ کلنه شوه او تردې دمه ۸۵ ګڼې دمتعا رب ج په خاص عنایت چاپ او خپرې شوي ، ښایي هغه دجهادي ادب اودافغان اصیل فرهنګ دساتلو اوپرمختیا په برخه کې ستره لاسته راوړنه او په خاص ډو دڅرک دچلونکو ، لیکوا پلاوي اوښاغلوهمکارانولپاره تل پاتی سعادت اولوی اعزاز وي ، له تاسو درنو څخه تمه ده چې دجهاد ، میړانې او ديني اقدارو دغه مخکښ او تاریخي سنګرپه خپلو علمي ، لورینو او نیکو پیرزوینو ، نور مستحکم ، تود او پیاوړی کړی ، وخت په وخت یې نیمګړتیاوې ورپه ګوته کړې اوپه سالمو مشورو یې دمحبوبیت کچه تردې زیاته درنه او مخ په بره وګرځوی . اداره

# پاخه او د ژرنه بېړیدونه

# او لا الهانده اداره!!

لطیف ـ عزم

دهیواد په نورو سیمو اوولایتونو سربیره ، دکابل ښار په اهمو ، پوځي سیمو او حساسو مراکزوباندې ، دمجاهدینوروانواو هدفمندوبریدونو، دامریکاله کیډې دنوې راوتلې اداري ، دبې توازنه چاروا کو، غورې اودربې یوه یوه رسوا اوپه نطفه کې خنثی ورکړځوله .

دکابل ولسمشر ، ړومبي مرستیال او پخواني کمونیست جنرال دوستم ، دواک په ړومبیو اونیوکې دځو بې قیضي خبرو په ترڅ کې هڅه وکړه ،ترڅو خپلوبادارنو ته وروښيي چې پر دوئ سرمایه ګذارې بې ځایه نده ، په اصطلاح که هغوئ اویا سراعلی پوځ قومندان ! ورته اجازه وکړي ، نو دطالبانوقوت اودحملو ځواک به ډیرژر اوبه اوله منځه یوسي .

سراعلی پوځ قومندان ، یې هم دواک په ړومبیو ورځو کې دځو احساساتي وینا په ترڅ کې غوښتل افغان ولس ته تریوې مودې کاذب باور ورکړي اویاعام افغان اومتدین ولس وویروې چې دطالبانو اومجاهدینوله مرستې اوملاترڅخه لاس واخلي .

دارنګه ، سراعلی پوځ قومندان ، چین ، پاکستان ، او سعودي عربستان ته دخپلو سفرونو په ترڅ کې سوچ وهلی وو، چې دخپلې خوښې ساختګي سوله اوثبات به هم له ځان سره راوړي .

خو ، دهلمند دشوراب سترو عملیاتو اوپه کابل ښارکې ځانګړو ، پخو اودرنو ګوزارونو ،چې زیاتره یې دخارجي یرغلګرو قواوو په کتارونو، استخباراتي اوشیطاني مراکزو اودفحشا اومنکر په نړیوالو اډو ترسره شول ، ګلم جنرال او هم یې دوسله وال سراعلی قومندان ماغزه سد ته راوستل چې دمجاهدینو په باب کوم ، فکراوسنجش دوئ کړی ، هغه تش اټکل اویو خیال پلو دی!!

ځکه کومه مقابله او مبارزه چې له تیرو۱۴ کلونو راهیسې دامریکا اوناټو دلوی زبرځواک او دهغوئ دنوکرانو په وړاندې روانه ده ، که ځواب اومقابله یې مادي طاقت ، ټکنالوژی اوپرمختللو لښکرو او غورو دربو کولای شوای ، بائیدپه ۲۰۰۲ کال یې چاره شوې واي ، دایوې نیمې لسیزې اوږدې جګړې ، دزرګونوامریکایي اوغربي پوځیانو مرګ ژوبلې او دتریلینو ډالرو مصارفو ته به اړتیانه پیښیده ، خوداچې په همدومره زیانونو اوتلفاتو او ډول ډول ستراتیژیانو اوددرځنو تجربناکو امریکایي جنرالانو په تجربو بیا هم جګړه دزبرځواک په رسوایي اوشکست تمامه شوه اومجاهدینو نه داچې خپله مبارزه او داعیه ژوندی وساتله ، بلکې دافغان مجاهد له رضایت او همدردی سره یوځای یې له یوې نه بلې ورځې ته خپل قوت اوشتون دهیواد په هره سیمه او برخه کې ثابت او ځلاند وساته ؛ نو اشرف غني خیل او ګلم جان یې بائید داحقیقت نور ومني ، چې طالب اومجاهد۱۴ کاله دامریکااو۴۹ هیوادونو له مجهز پوځ او طاقت سره دناصررب ﷻ په مرسته وجنګیدای شو او خبره اوس لله الحمد دزبرځواک دبستري تولیدوته ورسیده ، نو ستاسې دځپځپاندې او سربدالې اداري ځواب خو هغه دچاخبره چې یولاس درته وتړي په دابل یوه لاس هم ښه په نره اوجرات ویلای اوکولای شي .




چې ژوندی اوورستی مثال یې دکونړ ددانګام په ولسوالی کې دسوونو اربکیانو اوزرګونو ملي اردو دعسکرو دمسلسلو تعرضونو ، اوبریدونو په مقابل کې دځودرځنه مجاهدینو تاریخي استقامت او معرکه ده .

داستعمار نوکرانو انتهایي هڅه وکړه چې مجاهدین په دانګام کې له خپلو مورچو وخوځوي ، ولې ناصر رب ج ) داجیرې اردو او تازه دمو اربکیانو ټول حرکات او هڅې شنډې اوخنثی وګرځولي ، دخپل شکست او شرمندګی بهانه اوپلمه دهوایي ځواک عدم شمولیت وښوده ، په هغه سربیره یې دکونیزم زړې ببولالي ته هم لاس وراوږدکړ ، چې ګواکې مونږ ځکه سیمه تصفیه نشوای کړی ، چې په مقابل کې یې دګاونډي هیواد مسلح پوځیان جنګیدل !!

اول خو دغه خبره سراسر دروغ او کاذب تبلیغات دي ، که فرضا داسې وي هم ، نو تاسې خو ځانته ۴ لکه مجهزه او په اصطلاح میړنی اردو هم وایې او بادار مو هم لا موجود دی ، نو بیا ولې دګاونډي پوځ په مقابل کې چې ستاسې په اند آن دانګام ته راغلی کوم اقدام نشی کولای اوترینه کوکاري وهی ؟ .

ښکاري چې داټول اکاذیب ، چلوټې او صرف ددې هڅه ده ترڅو په خپلې بزدلی او جبون حالت باندې په همدغو تبلیغاتو پرده واچوي اوعام افغان ذهنیت اخلال کړي ، خواوس هربادرکه اوبافهمه افغان په دغو خبرو پوهیږي ، چې لدغو افواهاتو او تورونو څخه ستاسې اصلي موخه څه اوڅوک یې دڅه لپاره ستاسې په غوږونو کې څخول غواړي ؟

## د ژوند له پاره دا ښوخبرې زده کړه

**انسان باید په دي پوه شي چې که خپله ژبه کنترول نکړي نو همداژبه به يې ملا ور ماته کړي ،**
**انسان باید په دي پوه شي چې که دی په یوه خبر پخپله هر څومره ډاډه اوقانع وي بیا هم نشي کولی ټولو خلکو ته قناعت ور کړي ،**
**انسان باید په دي پوه شي چې ښه نوم او غوره شهرت تر ټولو شتمنیو غوره دی او باید وساتل شي ،**
**انسان باید په دي پوه شي چې په سمه لار د کیشپ په ډول تګ په خطالار دهوسۍ له تګ نه غوره دی**
**ماپتییلي ده چې یوه کار ته دری ساعته مخته حاضریدل له یوي دقیقي تاخیر نه غوره ده ،**
**ماپتییلي ده چې دخلکو عیبونه پلټل بې ګټې باید صلاحیتونه یې وپلټل او ګټه تري واخیستل شي ،**

# دنبوي مسجد ستنې
# او دنومونې اسباب

قريشي

لکه څنګه چه نن مهال جومات خپل اصلي حيثيت له لاسه ور کړی او مسلمانان يوازې د پنځه وخته لمانځه لپاره جومات ته ځي ، خپلې نورې پريکړي او کارونه په نورو ځايونو کې ترسره کوي . په همدې اساس دجومات اهميت کم او مسلمان امت له مسجد څخه لرې شوی ، په داسې حال کې چې د اسلام دبرم او دبدبې (درسول الله صلی الله عليه وسلم او خلفای راشدينو) پر مهال دسياسي ، ټولنيزو ، نظامي ، اقتصادي ، سفار تي اړيکو او ټولو اصلي مر کز مسجد نبوي ؤ په همدې خاطر فيصلې هم دالله دحکم مطابق کيدلې ولې وروسته دالړی ختمه شوه ، که څه هم د کارونو زياتوالی او د اداري سيستم پيچلتيا او نورې ستونزې ددې اجازه نه ور کوي چې هر څه په جومات کې تر سره شي ، ولې بايد داهڅه وشي چې هغه کارونه چې داسلامي امت مهمې پريکړې او تصميمونه وي هغه بايد په جومات کې وشي او جومات هم دې مر تبې ته ورسول شي چې ددې کارونو دترسره کولو لپاره جوګه شي .

دنبوي جومات (که څه هم پر هغه مهال په لږه ساحه کې ؤ) هرې ستنې ديو وزارت يا رياست رول درلوده چې په لاندې ډول ور ته اشاره کوو :

ستون ، اسطوانه ، عمود يا ستنې هغه پايې دي چې چت پرې اودريږي ، په نبوي جومات کې به صحابه ؤ اکثره نوافل او سنت لمونځونه له همدې ستنو سره خواکې اداء کول او رسول الله صلی الله عليه وسلم به هم اکثره د همدې ستنو نه ديوې په خواکې ناست ؤ، له همدې کبله اکثره قرآني آيتونه دهمدې ستنو تر څنګ پر رسول الله صلی الله عليه وسلم نازل شوي ، او اکثره احاديث هم دهمدې ستنو په خواکې بيان شوي .

د رسول الله صلی الله عليه په مبارک عصر کې دمسجد نبوي ستنې دلرګي وې ، کله چې د ابو بکر الصديق رضي الله عنه دخلافت په دوره کې ځنې ستنې (عمودونه) چينجيو (وينا) وخوړل نو ابو بکر رضي الله عنه بير ته هغه ستنې دلرګي پر ستنو بدلې کړې ، دعمر فاروق رضي الله عنه دخلافت په دوره کې دمسجد نبوي د لرګي ستنې لرې کړای شوې او پر ځای يې دخټو ستنې جوړې شوې (همغه دلرګي دستنو پر ځای) او ځای يې بدل نه کړ .

همدا سلسله روانه وه او تر او سه هم هغه ستنې پر خپلو ځايونو ولاړې دي، که څه هم نبوي مسجد د رسول الله صلی الله عليه دزمانې له جومات څخه ډير پراخه شوی او نوې اضافي ستنې پکې جوړې شوي .

درسول الله صلی الله عليه وسلم په زمانه کې د مسجد نبوي دستنو شمير ۳۵ وو، چې دخرما له ونې جوړې شوې وې ، دديوالونو لوړوالی يې ۳.۵ درې نيم متره ؤ ، دعثمان رضي الله عنه دخلافت په دوره کې دپخوانيو عمودونو (ستنو) پر ځای نوې ستنې چې نقش شوې تيږې پکې کاريدلې وې ودرول شوې او يو څو نورې ستنې يې هم زياتې کړې چې تعداد يې ۵۵ شو .

د وليد بن عبد الملک په زمانه کې نورې ستنې هم زياتې شوې او دنبوي جومات ساحه پراخه شوه چې دعمودونو تعداد يې ۲۳۲ شو ، دعباسيانو په دوره کې دالمهدي خليفه له لوري نورې ستنې هم زياتې شوې چې تعداد يې ۲۹۰ ستنو ته تقريبا ورسيد .

او دمماليکو په دوره کې دستنو شمير ۳۰۵ ته ورسيده .

دعثماني خلافت په دوره کې په نوي شکل پخوانې ستنې جوړې شوې، چې له سرو تيږو څخه وې او ځينې ستنې له يوې تيږې څخه جوړې شوې وې ، چې شمير يې ۳۲۷ ستنو ته ورسيد .

د ۱۳۷۰ ۱۳۷۵ هجري کلونو په موده کې کله چې ملک عبدالعزیز دعربستان پادشاه ؤ، مسجد نبوي نور هم پراخه شو او تقریبا ۴۰۰ اضافي ستنې له پخو خښتو او سیمټو په جومات کې ودرول شوې.



دملک فهد په دوره کې نبوي جومات په نوي انداز (چې اوس په همغه شکل دی) کې جوړ او پراخ کړای شو.

دیادونې وړ ده چې د رسول الله صلی الله علیه په وخت کې چې کومې ۳۵ ستنې (عمودونه) ؤ هغه په نوی انداز او جوړښت پر همغو ځایونو دی. په ځانګړې توګه هغه ستنې چې په روضه کې دي او ډیر شهرت لري تر اوسه په همغو نومونو یادیږي.

د نبوي مسجد عمودونه او دهغو دنمونې سبب:

۱ دعائیشې رضي الله عنها عمود یا ستنه: داعمود دروضې مبارکې په وسط کې قرار لري او رسول الله صلی الله علیه کله چې قبله له مسجد اقصی نه مسجد حرام ته واوښته، داځای د لمانځه لپاره ځان ته غوره کړ، له رسول الله صلی الله علیه نه وروسته صحابه وو او تابعینو له همدې ستنې سره لمونځ کولو ته ترجیح ورکوله.

دا ستنه ځکه دعائشه رضي الله عنها په نامه یادیږي چې، یوه ورځ صحابه ناست وو، په دوی کې دعائشې دخور ځوی معروف تابعي عروه بن زبیر رحمه الله هم ناست ؤ، نو عائشې رضي الله عنها وویل: ((په دې جومات کې یوه ستنه (عمود) دی که خلک یې وپیژني نو له هغې ستنې سره دلمانځه لپاره به پخپلو کې قرعه واچوي))، ناستو کسانو دهغې ستنې دځای پوښتنه وکړه خو عائشې رضي الله عنها هغه ځای په ګوته نه کړ، کله چې هغه کسان پاڅیدل نو عروه بن زبیر ته عائشې رضي الله عنها پټ څه وویل، نو عروه بن زبیر پاڅید پداسې حال کې چې ځنې صحابه وو هغه خاره، دهمدې ستنې په خواکې یې لمونځ وکړ، نو صحابه هم پاڅیدل او دهغې ستنې په خوا کې په لمانځه ودریدل، له هغې وروسته دا ستنه دعائشې رضي الله عنها په نامه ونومول شوه چې اوس هم دهمدې عمود په سر کې لیکل شوی، همدارنګه داستن دقرعې دستنې په نامه هم یادیږي.

۲ اسطوانة الوفود (د وفدونو یا هیئتونو ستن): داستن د حجري مبارکې سره نښتې ستن ده، داځکه د وفود په نوم ونومول شوه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به ددې ستنې لاندې دعربو له هیئتونو او ډلو سره کتل او له هغوی نه به یې داسلام په اړه بیعت اخیسته، او دهمدې ستنې په خواکې د بني تمیم دقوم مشهوره واقعه هم تیره شوې چې په سوره ء حجرات کې یې ذکر راغلی چې هغوی غږ کړ: اې محمده! راووزه چې افتخار در وښیو، نو الله جل جلاله داآیتونه نازل کړل: "إنّ الّذين ينادونك من وراء الحجرات أكثرهم لا يعقلون ولو أنّهم صبروا حتّى تخرج إليهم لكان خيرا لهم" (الحجرات: ۴-۵).

او دهمدې ستنې په خوا کې د ضمام بن ثعلبه چې د بني سعد بن بکر له قبیلې څخه ؤ، واقعه پیښه شویده او هغه داسې چې ضمام بن ثعلبه مسجد نبوي ته راغی او رسول الله صلی الله علیه وسلم یې نه پیژانده، نو ویې ویل: کوم یو له تاسو نه د عبد المطلب ځوی دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: زه یم. ضمام وویل: اې محمده اې د عبد المطلب ځویه! زه له تا څخه دیوې مسئلې پوښتنه کوم او په سختو الفاظو کې درنه پوښتنه کوم نو ته به په زړه کې څه نه راولې (نه به خفه کیږې).

رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل : زه نه خفه کيږم وواپه ستا په زړه کې څه دي ؟ ضمام وويل : په الله قسم در کوم هغه چې ستا معبود دی ، او له تانه وړاندې چې څوک وو دهغو الله دی او چې له تا وروسته څوک راځي دهغو معبود دی ، آيا الله تا ته امر کړی چې مونږ ته امر وکړې چې يوازې دهغه جل جلاله عبادت وکړو او له هغه سره څوک شريک نه کړو؟ او ټول هغه خدايان چې زمونږ پلرونو يې عبادت کولو هغه پريږدو ؟

رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل : هو . ضمام وړاندېنی قسم بيا تکرار کړ او پوښتنه يې وکړه چې: آيا الله در ته امر کړی چې پينځه وخته لمونځ وکړو ؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم ور ته وويل : هو . بيا ضمام تر اخره د اسلام ټول ارکان په همغه اول شکل ذکر کړل او پوښتنه به يې کوله چې دا الله تا ته امر کړی ، په اخر کې ضمام وويل : أشهد أن لا إله إلا الله، وأن محمداً رسول الله، وسأؤدي هذه الفرائض، وأجتنب ما نهيتني عنه، ثم لا أزيد ولا أنقص، ثم انصرف إلى بعيره راجعًا. فقال رسول الله (صلى الله عليه وسلم): "إن صدق دخل الجنة". شاهدي ور کوم چې دعبادت لايق يوازې الله تعالى دی او محمد دالله رسول د الله دی او دا ټول فرائض به پر ځای راوړم او له هغو شيانو دې چې منع کړی يم، له هغو به ځان ساتم او نه به په دې شيانو (فرائضو) کې زياتوالی کوم او نه به يې کم کړم ، بيا دخپلې سورلۍ په لور روان شو ، نو رسول الله (صلى الله عليه وسلم) وفرمائل : (که ده ريښتيا ويلي وي نو جنت ته به داخل شي) ، معنی دا چې که يو انسان يوازې دالله فرائض پر ځای کړي او له نواهيو (منع کړل شويو) څخه ځان وساتي، که څه هم سنت او نوافل اداء نه کړي ان شاء الله چې جنت ته به داخل شي .

٣ د توبې عمود يا ستنه : او د ابولبابه د عمود په نامه هم يادېږي ، د منبر مبارک نه د ختيځ په لوري څلورمه ستن ده ، او داهغه ستن ده چې جليل القدر صحابي ابو لبابه رضي الله عنه په هغې پورې ځان تړلی ؤ او ويې ويل تر هغو به په دې ستنه پورې تړلی يم تر څو مې چې الله توبه قبوله نه کړي او رسول الله مې په خپل لاس له دې ستنې خلاص نه کړي .

او د ابو لبابه رضي الله عنه مشهور کيسه ده ، کله چې رسول الله (صلى الله عليه وسلم) د احزابو له غزوې نه وروسته د يهودو مشهوره قبيله بني قريظه کلابنده (محاصره) کړه او هغه ددې لپاره چې له قريشو سره يې مرسته کوله او له مسلمانانو سره يې په وعده کې غدر او خيانت کړی وو ، محاصره ډيره اوږده شوه او د بني قريظه وو ويره هم مخ پر زياتيدو وه ، نو بني قريظه وو له رسول الله (صلى الله عليه وسلم) څخه وغوښتل چې ابو لبابه رضي الله عنه ور واستوي تر څو خبرې ور سره وکړي ، ددې لپاره چې ابولبابه مخکې له اسلامه دبني قريظه حليف ؤ ، کله چې ابو لبابه هلته ور ورسيد نو دهغوی ښځې او ماشومان ور ته په ژړا شول او په عواطفو کې يې راوست او بيا يې ترينه پوښتنه وکړه که مونږ رسول الله (صلى الله عليه وسلم) ته تسليم شو نو له مونږ سره به څه وکړي ؟ ابو لبابه رضي الله عنه خپلې مرۍ ته اشاره وکړه يعني وبه مو وژني .

ابولبابه رضي الله عنه وايي چې په الله مې دې قسم وي چې په همغه ځای پوه شوم چې ما له الله او له رسول الله (صلى الله عليه وسلم) سره خيانت وکړ . نو له هغه ځايه مخامخ مسجد نبوي ته راغی او په همدې ستنه پورې يې ځان وتاړه ، کله چې رسول الله (صلى الله عليه وسلم) خبر شو نو ويې فرمائل : چې که ما ته راغلی وای نو ما به له الله ور ته ببښنه غوښتې وه، اوس ده پخپله ځان تړلی نو دالله فيصلې ته دې انتظار وکړي .

د ابو لبابه رضي الله عنه لور به راتله او دقضاې حاجت او لمانځه لپاره به يې خلاصولو ، کله چې الله جل جلاله د ده توبه قبوله کړه نو رسول الله (صلى الله عليه وسلم) د ام سلمه رضي الله عنها په کور کې ؤ ، ام سلمه رضي الله عنها وايي چې ما سهار وختي واوريدل چې رسول الله (صلى الله عليه وسلم) خاندي ، نو ما پوښتنه ترينه وکړه چې ولې خاندې؟ الله دې تا وخندوي .

رسول الله (صلى الله عليه وسلم) وويل : د ابو لبابه توبه الله قبوله کړه . ام سلمه وويل : آيا زيری ورې ورکړم ؟ رسول الله (صلى الله عليه وسلم) ور ته وويل : که غواړې ولې نه . نو دخپلې خونې په وره کې ودريدله (پدې وخت کې دحجاب حکم نه ؤ راغلی) او غږ يې کړ : خوښ اوسه يا ابا لبابه الله ستا توبه قبوله کړه .

کله چې صحابه وو دا آواز واوريد نو په تيزۍ ابولبابه ته ورغلل تر څو يې له ستنې خلاص کړي ، خو هغه وويل : په الله مې دې قسم وي چې ما به له رسول الله (صلى الله عليه وسلم) څخه پر ته بل څوک نه خلاصوي ، همغه وه کله چې رسول الله (صلى الله عليه وسلم) د سهار لمانځه ته راغی نو د ابو لبابه پړی يې پرانيست .

په دې ستنه پور ته اوس هم ليکل شوي د ابو لبابه عمود يا اسطوانه ، همدارنګه داستنه د الاسطوانة التوبة په نامه هم ياديږي .

۴ الأسطوانة المُخَلَّقة يا عطرينه ستن : دا ستن د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مصلى دقبلې لوري سره پيوسته ده ، يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم له دې ستنې سره ناست ؤ، چې په هغې يې دچا دپوزې چتلي وليده، دا کار پرې ګران تمام شو، نو يو صحابي رضي الله عنه ستنې ته ورپاڅيد او هغه دچټلۍ ځاى يې وګراوه او پاک يې کړ ، او پر ځاى يې يوه خوشبويي ولګوله چې دهغې نوم الخلوق وه ، رسول الله صلى الله عليه وسلم په دې کار خوښ شو ، نو دهمدې الخلوق عطر و په وجه ددې ستنې نوم المخلقه شو يعنې د خلوق په عطر و خوشبويه شوې ستنه .



۵ اسطوانة السرير (يعنې دبسترې يا خوب ځاى ستنه) : دا ستنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اعتکاف په مبارک ځاى کې او په اوسني وخت کې د حجرې مبارک کې له کړکۍ سره نښتې ده ، په دې ځاى کې به د رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارک بستره چې دخرما له پوټکو به جوړه وه غوړول کيده ، دا ستن د توبې ستنې ختيځ لور ته موقعيت لري .

٦ د المحرس يا الحرس (ساتنې يا ساتونکو) ستنه يا عمود : او دا ستنه يا عمود د توبې د ستنې ترشا شمال لور ته ولاړه ده ، ځنې صحابه به ددې ستنې ترخوا کيناستل چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم ساتنه وکړي، دا ستنه د اسطوانه علي رضي الله عنه په نامه هم ياديږي ، ځکه چې علي رضي الله عنه به هم له دې ستنې سره د رسول الله صلى الله عليه وسلم ساتنه کوله تر دې چې الله جل جلاله د المائدې سورت دا آيت نازل کړل : "والله يعصمك من النّاس " (المائدة: ٦٧) الله تا له خلکو ساتي نو صحابه وو ورسته له هغې پهره داري پريښوده .

٧ اسطوانة مربعة القبر : دا ستنه د حجرې مبارکې په شمال لويديځ څلوريز يا مربع کونج که ولاړه ده او د تسميې وجه يې هم همدا ده ، څرنګه چې دا ستنه دحجرې شريفې په داخل کې ده نو لمونځ هم ورسره نه کيږي .

٨ اسطوانه التهجد يا د تهجد و عمود يا ستن : دا ستن هم د حجرې شريفې په داخل کې ده او ددې په خواکې به رسول الله صلى الله عليه وسلم د شپې له خوا د تهجد لمونځ اداء کاوه .

## د خلکو عيبونه مه لټوئ

يو وخت يو باچا و په يوه سترګه ړوند او په پښه ګوډ و ، يوه ورځ يې دهيواد تکړه انځورګران اورسامان ټول راوغوښتل او امر يې وکړ چې د ده يو انځور وکاږي په دې شرط چې دده عيبونه پکې ښکاره نه وي

ټولو انځورګرانو انکار وکړ او ويې ويل : ديوه ړانده او ګوډ انسان داسې انځور به څنګه کاږي چې روغه سترګه او روغه پښه ولري ؟

ټولو انځورګرانو د باچا له انځور جوړولو نه انکار وکړ خو د دې ټوليز او عام انکار په منځ کې يو انځورګر رامنځته شو او سينه يې وډبوله چې دا کار دى کوي ...!! په کار يې پيل وکړ او دباچا يو ښايسته انځور يې تيار کړ او هغه داسې چې باچا دښکار په کالت کې ګونډه ماته او دښکار د ټوپک څخې ته يې يوه سترګه پټه او په بله هدف کره کوي

په دې توګه باچا ښايسته انځور په داسې توګه تيار شو چې دواړه درانه عيبونه يې هم پکې پټ شول ، کاش موږ هم د دې انځور ګر په څير د نورو خلکو د شخصيت مثبت انځورونه واخلو او په منفي ټکو او سلبياتو يې سترګې پټې کړو ، هيڅ دسې انسان نشته چې هغه تيروتنې او منفي اړخونه ونلري خو که موږ دځان او نورو ارامي او خوشالي غواړو بايد د هرچا ايجابي او مثبتو خصلتونو ته ځيرپاته شو او په منفي خويونو يې سترګې پټې کړو

## په افغانستان کې، د امریکایانو

# ځاني او مالي تلفات

### د امریکایانو له نظره

موسی فرهاد

په ۱۸مه میلادي پېړۍ کې د توماس کین په نوم د انګریزي ژبې یو وتلی ادیب تېر شوی، چې په غرب کې یې په ډېرو پخو وړاندوینو سره ښه نوم موندلی دی. توماس د امریکا په اړه یو ځل ویلي: (خواکمن به ترهغه مهاله بقاء لري ،چې د ناوسه وګړي د زبیښلو تیروتنه کوي ). د نوموړي انګریز ادیب توماس وړاندویني پرځپل ځای.

مګر که سړی خپله تاریخ ته متوجه سي نو ویلای شي چې همیشــه د نامسـلمانو سترو ځواکونو زوال هغه مهال پیل شوی چې کله یې ظلم ته ملا تړلي. او شکســت یې هم د کمزورو قومونو له لاسه خوړلی. د لومړیو پېړیو سپېڅلو غزواتو او د منځنیو پېړیو اسلامي مبارزو ډېرو سترو کفري قدرتونو ته ماتي ورکول یې ښه بیلګي دي.

داسي ښکاري چې پر افغانســتان او عراق باندي او بیا همدا اوس په هرځای کې پر ضعیفو مســلمانانو باندي پرله پســي یرغلونه د امریکا او غربي قدرتونو د زوال وخت دی. ډېري نښــي یې څرګندي دي. هغه دا چې امریکایان پخپل پوځي ځواک او ډېرو وسائلو باندي غره وو ، او همدا دوه ځیزونه یې د یکه تازۍ رمزونه وو ، کله چې یې دغو دواړو آثاثو ته صدمه رسیږي ؛ نو طبعي ده چې له شکست سره به مخ کیږي.

موږ په لاندي کرښو کې د امریکایي یرغلګرو هغه تلفات را شمېرو چې په دې یوه نیمه لسـیزه کې په افغانســتان او عراق کې ورته رسیدلي دي او پخپله یې امریکایي سرچیني تائیدوي .

په ۲۰۰۱م میلادي کال اکتوبر کې امریکا پر افغانســتان پوځي یرغل په داسي حال کې پیل کړ چې ترڅنګ یې د نړۍ یو شمېر نور ځواکمن هیوادونه هم ملګري ول. امریکایان په پرمخ تللو وسلو سمبال ، له ډېرو پیسـو برخمن او د ځانګړو تربیت شده پوځونو درلودونکي وو ، دوی او ورسره خلکو په لومړي سر کې فکر کاوه چې جګړه به یې وخت نه اخلي او په دې توګه به نو د دوی لګښــت ډېر کم وي. پخپله غربي شنونکي هغه مهال هم په دې اند وو چې که جګړه اوږدیږي ، نو د امریکا ماتي حتمي ده ځکه چې په دې سره به د امریکا مالي او ځاني خســاره دومره شي چې ملا ماتوونکي به وي. اوس چې کتونکي د امریکا حالت ګوري نو داسي ښکاري چې د دوی لومړنی اټکل بیخي ناسم ؤ. ځکه چې جګړه دومره وربانديِ اوږده سوه چې یوازي د مړګونو ، زخمونو تلفاتو او بې شمېره مالي لګښتونو په بیه ورته تمامه شوه.

**د امریکا د ځاني او مالي خســاري په اړه دوه ډوله احصــائیې شته یو دا چې په رسمي ډول یې د امریکا پوځ او حکومتي ارګانونه خپروي ، بل د امریکا هغه مدني سازمانونه دي چې د جګړو سره یې د ځینو وجوهاتو پر بنا مخالفت درلود ؛ د هغوی اعداد او شمار کاملاً جدا وي. مثلاً په افغانستان او عراق کې د امریکا د وژل شوو عسکرو شمېر پینتاګان تر اوسه (۷۶۹۸) ښیي ، ولي د امریکا د متقاعدو پوځیانو اداره چې څه ناڅه ناحکومتي بلله کیږي ؛ وایي چې د وژل شوو تو تل**

شميره(۷۲۲۰۰ دوه اويازره شپږسوه تنه ده) همدارنګه د زخميانو تعداد د پنتاګون په خبره(۴۱۰۳۰ يو څلويښت زره دېرش تنه) دى، مګر د (...-....) انتي وار په نوم اداره چې په دې نوم ويبپاڼه هم لري؛ د مجروحينو شمېر(۱۰۰ سل زره) يادوي. همدارنګه د امريکا د متقاعدو پوځيانو اداره بيا د زخميانو تعداد تر دې هم لوړ يعني(۲۰۰ شپږ سوه زره) په دې دليل ښيي چې وايي، د امريکا د پوځي قانون له مخي د هغو زخميانو چې امريکا ته د تداوي او درملني لپاره رسيږي؛ بوديجه به يې د متقاعدو پوځيانو د اداري له بوديجې نه بيليږي. نو په دې استناد هغوى وايي چې تراوسه د(۲۰۰ شپږسوه زره) شپږ لکه زخميانو درملنه يوازي په امريکا کې شوې ده، هغه لا بيل دي چې د جګړي پر مهال په همغه سيمه کې تداوي شوي دي.

د امريکا کانګرس د مالي لګښتونو د انسجام په موخه يوه اداره ګمارلي چې د پوځي او ملکي لګښتونو څارنه وکړي. ويل کيږي چې دغه اداره پخپل کار کې خورا دقيقه ده، انداچې د ټولي امريکا يعني حکومت او ولس ټول عائدات او لګښتونه په داسي شکل څاري چې د هر ساعت د عائد او لګښت دَرګ لګوي او سره مقايسه کوي يې. د بيلګي په توګه دغه اداره وايي: چې له ۲۰۰۱ م کال نه تراوسه پوري په هر يوه ساعت کې د امريکا حکومت(.......,..,..$) لس اعشاريه څلور پنځوس ميليونه ډالر خرچ کوي. چې ۸۰٪ پرجګړو لګيږي او دا ټولي پيسي يوازي له هغو ټيکسونو او ګمرکي مالياتو مصرفيږي چې د امريکا ولس يې حکومت ته ورکوي. يعني څوارلس کاله هره ورځ او شپه په هر ساعت کې د امريکا حکومت د خپلو خلکو له ټيکسونو او ماليو څخه لس ميليونه او څلور پنځوس لکه ډالر مصرفوي. که دا ټول سره ضرب کړاى سي خورا لوړ لګښت دى چې دا دنړۍ په تاريخ کې ډېر ملاماتوونکي مصارف ګڼل کيږي.

د کانګرس د مالي تحقيقاتو اداره وايي چې: د ۱۱م ستمبر ۲۰۰۱ کال نه تر ۲۰۱۰ م کال پوري د افغانستان او عراق د جګړو لپاره منظور شده تخصيص(۳-ټريليونه ۲۹۱ مليارد) ډالره دى. يعنى(۳۰۰۰ زره ۲۹۱ دوه سوه يو نوي ميليارد ډالره) دغه شمېره د فرانسي يوې ورځپاڼې (لوفيګارو) هم تائيد کړې ده. نوموړې ورځپاڼې په (٪۸۰ ۴ /.....) کې د (جګړې ريښتيني خساره) ترسرليک لاندي د يوه کتاب خلاصه نشر کړه چې په هغه کې ارقام او مدارک ټول مستند بلل شوي دي.

د (العرب نيوز) ويبپاڼې د تحقيقاتي څانګي مشر عبد المنعم؛ ليکي چې د شته ارقامو او هغو مدارکو په آساس چې له امريکايي څانګو نه ترلاسه شوي؛ تراوسه په افغانستان او عراق کې د امريکا (۲ لکه) مهم جنګي وسائط او تجهيزات په مکمل ډول له مينځه تللي، تر(۱-ميليون) زيات عسکر يې مړه، زخميان، معيوب او په رواني ناروغيو اخته شوي دي.

د الکفاح عربي اونيزي پخپل يوه مفصل راپور کې د کانګرس د يوه تن جيمس مک ګفرن په حواله ليکي چې امريکا هره ورځ(۲۴۲) ميليون ډالره د افغانستان او عراق په جګړه کې خساره کړې ده. يعني دا چې امريکا ته په هره يوه ثانيه کې(۲ زره ۸۴۷ اته سوه اوه څلويښت) ډالره نقصان رسيږي. دغه راپور د يادي منبع له خولي زياتوي چې د امريکايي پوځيانو، ملکي قراردادیانو، ديپلوماتانو، مزدورانو، سياحانو او نورو..ټولو د مړيني شمېره تر(۱۰۰۰۰) لس زره پورته ده. البته نوموړي دا خبره په (۲۰۰۷م) کال کې کړې وه. چې په دې توګه نو په راوروسته کلونو کې د تلفاتو شمېره دوه چنده اټکل کيداى شي.

د امريکا د مرکزي بانک د شميرو له مخي: د امريکا ملي قرضه يعني هغه پورونه چې د امريکا له ټولي ملي بوديجي نه غوښتونکي دي؛ تر جګړو مخکي يوازي(۱۲ ميليارد ډالره) وه ولي اوس(۱۷۰۰ اوه لس سوه) ميليارد ډالرو ته پورته شوې ده. ملي بوديجي ته يې روزانه(۲,۲۵) مليارد ډالره نقصان رسيږي. له ۲۰۰۸م کال نه د (۷ ميليونو) متقاعد مامورينو مياشتنۍ تنخواګاني بندي شوي دي. ويل کيږي چې امريکا اوس په مياشت کې (۸۵) مليارد ډالره نوټونه

چاپوي چې دا هم پر اقتصــــــاد ډېره ناوړه اغېزه کولای شي. له امریکا څخه په نږدې راتلونکي کې لاندې قرضونه غوښتونکي دي: جاپان(۵۸۲) میلیارد ډالره، چین(۴۰۰) میلیارد ډالره انګلستان(۲۴۴) میلیارد ډالره، سعودي عربستان او نور هغه نفت لرونکي هیوادونه(۱۲۳) ملیارد ډالره ورنه غواړي.

یوه خبره چې د امریکا د ۲۰ لومړۍ درجه کارپوهانو له لوري ترسره شــوي؛ وايي چې له یوې خوا د امریکایي پوځیانو او اتباعو د وژنې دقیق شمېر لا هم تر اوســه مبهم پاتې دی، یعني د پېنټاګان په اوسنیو شـمېرو باور نلري. او له بلې خوا په ټریلینونو ډالره تاوان امریکا ته رسېدلی دی. د دې ډلې ګډون وال سناتور ،،،،،،،،، چې د جمهوري غوښتونکو د ګوند غړی او د تنسي ایالت اوسېدونکی دی؛ وايي: د القاعده(۱۹) تنو د څلور یا پنځه سوه زره ډالرو په لګولو سره د (۱۱/۹) پیښــه ترسره کړه، څه د پاسه(۳۰۰۰) کســــان یې ووژل، له(۷۰۰/تر/۱۰۰۰) میلیارد ډالرو مالي تاوان یې ورساوه. مګر وروسته تردې چې امریکا پر افغانســــتان، عراق او القاعده باندې برید پیل کړ، د جنګ له ابتداء نه تر ننه پورې مو د (۱۱/۹) د پېښــې نه څلور چنده ځاني او مالي نقصان برداشت کړ.

یوه بله امریکایي اداره د امریکا د مالي خساري احصائیه په دې توګه په لاندې جدولونو کې ښيي:

| Cost of Military Action Against ISIS | Cost of War in Afghanistan |
|---|---|
| Every **hour**, taxpayers in **the United States** are paying **$312,500** for **Cost of Military Action Against ISIS.** | Every **hour**, taxpayers in **the United States** are paying **$10.17 million** for **Cost of War in Afghanistan.** |
| **$1,468,258,411** | **$771,354,515,671** |

| Cost of War in Iraq | Total Cost of Wars Since 2001 |
|---|---|
| Every **hour**, taxpayers in **the United States** are paying **$365,297** for **Cost of War in Iraq.** | Every **hour**, taxpayers in **the United States** are paying **$10.54 million** for **Total Cost of Wars Since 2001.** |
| **$818,521,924,758** | **$1,589,776,591,407** |

یعني په هر ساعت کې د امریکا د ټیکس ورکوونکو له مالیې نه د امریکا حکومت پر جګړو څومره مصـرف کوي، تاسو یې کتلی شي

خلاصه دا چې امریکا د ناجایزه یرغل په پایله کې څه ترلاسه کړل:

۱- د یولسم ستمبر د ۳ زره مړو، او څه د پاسه ۱۰ زره میلیارد ډالره مالي خساري پرته:

۲- له دوه زرم کال نه تر اوسه په افغانستان او عراق کې (۱میلیون) عسکر مړه، زخمیان، معیوب او رواني ناروغان.

۳- په جګړو کې یې تر اوسه ۲ لکه مهم پوځي وسائط او تجهیزات تباه.

۴- د جګړې لګښت یې تر ۳ ټریلیونه او ۲۹۱ میلیارد ډالرو وراوړي.

۵- د امریکا د قرضونو حجم له (۱۲میلیارد ډالرو) نه (۱۷۰۰ اوه لس سوه) ته زیات شوی دی.

۶- له دوه زره اتم کال نه د (۷۰ میلیونو) متقاعدو پوځي او ملکي مامورانو تنخواګانې ځنډېدلې دي.

۷- لا هم د دوی یرغل او جګړه پرته له کومې مشـــخصــــې پایلې جریان لري. ورځنۍ تلفات او مالي خســــاره یې ورځ تر بلې زیاتیږي. چې بالاخره به له ډېر حیرانوونکي، ذلیل سره شکست سره مخ کیږي. انشاء الله

# ۳ اکاله دتروریزم پر ضد جګړه، خو تروریزم لاهم مجهول؟ اهداف څه دي؟

شهیدزوی



هر کار چې څوک يې په اړه اقدام کوي د هدف د لاسته راوړلو لپاره يې کوي ، پخپله کارهدف نه وی اوهدف تل مشخص وي غير مشخص شی هيڅکله هم د دې وړ نه وي چې هدف وګڼل شی ، نو د عقل نه برخمن هر شخص دهدف دمشخص کولونه پس د يو کار په اړه قدم پورته کوي او د هدف مشخص کېدل هغه مهال شوني وی چې هدف معلوم وي .

ټول لويديځ چې پر اسلامي نړۍ د يرغلونو لپاره متحده اود امريکا په مشرۍ کې يې پر افغانستان د يرغل کولو نه دالړۍ پيل کړه نو ويل به يې چې دا د تروريزم پر ضد جګړه ده ، يانې د دې جنګ هدف د تروريزم له منځه وړل دي .

دا چې کابو ټول لويديځ و او مشري يې دامريکا په څېر د نړۍ تر ټولو ستر زبر ځواک کوله نو حمله کونکی اړخ د وسايلو په لحاظ ډېر قوي ؛ په خپل مادي ځواک ډېر مغرور او نړۍ ترې ډېره مرعوبه وه نو هيڅا دا جرأت ونکړ چې يې ورنه پوښتلي وای چې تروريزم څه شي دي ؟ تروريستان څوک دي ؟ او په کومو ساحو کې به د دوئ پر ضد جنګ کېږي او کومې سيمې به تر څومره وخته د جنګ په ډګر بدلولی شي ؟

دا ټولې پوښتنې د ابهام په تورو تيارو کې د پردوشا ته پريښودل شوې ؛ اسلامي نړۍ چې د ډېر ضعف په حالت کې يې قرار لرلوددې پوښتنو د مطرح کولو جرأت يې ونه شو کړای او نه هم د نړۍ په سترو طاقتونو کې کوم طاقت د امريکا د شومو عزايمو د مخنيوي په موخه دا سوالونه را پورته کړل او نه دملګرو ملتونو په نوم ادارې چې د ددې يرغل اجازه يې ور کړې وه د دې پوښتنو راپورته کول اړين وبلل .

او ډېره عجيبه خو لا داده چې ددې جنګ ديارلس کلونو تېر شول خو د کوم شی پر ضد چې پيل شويدي تر اوسه پورې هغه شي مشخص نکړای شو او نه يې هم تعريف وشو.

دا دومره لوی اتحاد بيا دا دومره اوږدجنګ خو د کوم شي پر ضد چې جنګ پيل شوی او روان دی هغه لا همداسې بې تعريفه پاتی دی ؟! دا ولې؟

د دې ولې جواب ډېر ساده او اسان دی ؛ هرڅوک پوهېږي چې تر اوسه تروريزم همداسې مجهول پرېښودل او تعريف يې نه کول تر شا ډېر ستر هدف لري ، له دې لارې د امريکا اونورو غربي اشغالګرو مټ ډېر خلاص پاتی دی ، بس خپله خو ښه يې ده چې څه شي ته تروريزم وايې او څوک تروريستان کنې .

نواوس چې په افغانستان کې د تېر جهاد په برکت شوروي اتحاد مات شوی او غربي ښکېلاک اسلام او مسلمانانو ته د يواځني مقابل لوري او دښمن په نظر ګوري د خپلو مکارو رسنيو پر مټ د خپلو پوچو تبليغاتو له لارې همدا حقيقي اسلام د تروريزم او سوچه مسلمانان د تروريستانو په صفت معرفي کوي ؛ په اسلامي هېوادونو کې چې په کومو ديني مدارسو کې د مسلمانانو بچو ته د ديني علومو د ورښوولو کومه مقدسه لړۍ روانه ده د دين دغه مراکز د تروريزم ځالې بولي ، اسلامي

لاربنوونو ته ژمن ټول مسلمانان او خصوصا حقپالونکي علماء د سخت دريزو او بنسټپالو په څېر القابو يادوي ؛ په ډېرې سپينې سترګۍ د شرعي نظام د حاکميت ټولو هلوځلو او د يرغلګرو په مقابل کې د خپل دين ، خاورې ، ځان ، ناموس او مال نه د دفاع په موخه مقدس مقاومت د وحشت او بربريت په څېر په سپکو الفاظو يادوي او د دې مقدس جهادي بهير مشران تروريستان بولي چې پر سرونو يې په مليونونو ډالر انعامونه ګدي .

خو بر عكس كه امريكا او نور غربي متحدين يې د افغانستان او عراق په څېر د مسلمانانو هېوادونه په بشپړه توګه اشغال کړل او وربانديې ناروا جنګونه مسلط کړل دلته يې په سونو زره بې ګناه مسلمانان ووژل ، په تورو شپو کې يې د مسلمانانو په کورونو ورواوښتل ، وحشتناک زندانونه يې ترې ډک کړل ، جنازې اوودونه يې په نښه کړل ، غونډغونډ کلي يې بمبار او په کنډوالو يې بدل کړل خو د دوئ دا يو عمل هم تروريستي عمل نه ګڼل کيږي ؟!

د مسلمانانو وروستي عثماني خلافت چې سقوط کړی و او د فلسطين خاوره د برتانويانو تر اشغال لاندې وه د انګريزانو په سر پرستۍ کې لويديځ د نړۍ د ګوټ ګوټ نه يهوديانو فلسطين ته راوستل د فلسطينيانو په ځمکو کې يې دومره زيات مېشت کړل چې يې پکې خپل دولت هم اعلان کړ ؛ د دولت د اعلان نه ترننه د تېرو کابو ۷ لسيزو راهيسې د فلسطينيانو د ځمکو د غصبولو لړۍ روانه ده ؛ په سونو زره فلسطيني مسلمانان د خپلو ځمکو او کورونو پريښودلو او د سوريې ،اردن او لبنان مهاجر کمپونو او د نړۍ نورو هېوادونو ته په هجرت کولو اړ کړای شول ،داچې داسرائېلي دولت له لورې فلسطينيانو د ځمکو او کورونو د عصبولو لړۍ نده تم شوې ترڅنګ يې له هماغې ورځې راهيسې دزوړ ، ځوان ، کوچني سړي او ښځې د امتياز پرته له هماغه ورځې راهيسې د وحشت نه ډکو اسرائيلي زندانونو کې د بنديانولو او وژلو لړۍ هم روانه ده ، اوس هم د مېرمنو او کوچنيانو په شمول له ۱۵ زرونه زيات فلسطيني مسلمانان د اسرائيلو په مختلفو زندانونو کې د تعذيبونو نه ډکې د اسارت شپې او ورځې تېروي خو هيڅوک يې د پوښتنې نشته .

او خبره په اسرائيلو کې د ننه د فلسطينيانو د زنداني کولو اوله خپلو سيمو او کورونو نه يې د ويستلو تر حده نده محدوده بلکې د اسرائيلو د قلم رونه بېرون يې هم د فلسطيني مسلمانانو د وژلو لړۍ جاري ساتلې ده او داسې يې جاري ساتلې چې يې پر کمزورو فلسطينيانو په خپلو کورونو کې ستر يرغلونه کړي دي داسې يرغلونه چې په يوبو يرغل کې په زرونو بې ګناه فلسطينيان شهيدان شويدي چې د لبنان د صابره او شتيلا مهاجر کمپونو کې د فلسطيني مسلمانانو قتل عام هم تاريخ په خپلې سينې کې خوندي ساتلی دی او د ۲۰۰۷ م نه پس پرغزې ۳ ستر وحشي يرغلونه چې په هريو کې د زرونو بې ګناه فلسطينيان ټپيان او وژل کېدل او په کنډوالې د غزې بدلېدل خو ښخی زموږ مخې ته دي ؛ يوائې دې وروستي يرغل ته که وګورو دا څومره ستراودوحشت نه ډک دی ؛ دهمدې ۲۰۱۴ کال دجون له ۸ مې نېټې نه دا ګست مياشتې تر ۲۶ مې نېټې پورې پرغزې داسرائيلو له لورې د ۷ اوونيوپه اوږدو کې پدې وحشي حملو کې د ۵۷۰ کوچنيانو او کابو ۳ سوه مېرمنوپه شمول ۲زره او ۱۳۰ مسلمانان شهيدان او ۱۱ زره ټپيان شول چې پخپله دملګرو ملتونوله لورې دخپروشويو اعدادو ارقامو له مخې پکې دکوچنيانو اومېرمنوپه شمول د۱۸ سوه نه زيات ملکي وګړي دي ، ملګرو ملتونوداهم ويلي وو چې په غزې کې په ټولووژل شويو کې ايله د ۲۲۶ تنانو تړاو دوسله والو ډلو سره دی دملګرو ملتونو په وينا په وژل شويو کې ۸۰ سلنه دولسي وګړو ده .

داځل په غزه کې دځاني تاوانونو ترڅنګ مسلمانانوته ډېرسترمالي تاوانونه هم واوړېدل ؛ دېې طرفو ادارو له لورې دترسره شويو سروېګانو له مخې غزې ته لږترلږه ۵ مليارده ډالرتاوان رسېدلی دی ؛ اسرائيلي ځواکونوپه لويه پيمانه دغزې دودانيو دورانولوهڅې کړې وې ترڅودډېرزيات فلسطينيان دخپلو سيمو پرېښودلو ته اړ اوپدې سيمو کې دحماس قوت په کلي توګه له منځه ولاړ شي ؛ ۱۰ زره کورونه په کلي توګه له منځه تللي وو اود۳۰ زرونه زياتو ته تاوانونه رسېدلي وو ؛ دغزې دښار۲۵ سلنه ودانۍ دخاوروسره خاورې او ۷۰ سلنه ته يې دومره تاوانونه اوښتي وو چې له اوسېدو نه وتې وه ؛ شجاعيه خو۶۰ سلنه ودانۍ دخاورو سره خاورې دي ؛ دغزې ۵ سوه زره اوسېدونکي دخپلو کورونوپرېښودلوته اړشوي وو؛ کله چې دوئ خپلو کورونوته راستانه شول نوټولو دخپلو کورونو په ځای د خاورو ډېرې وليدل ؛دغزې دبرق يواځنی ستر سټېشن هم اسرائيلو تباه کړی و اوداوبورسولو نظام ته يې هم ډېرتاوان رسېدلی و ؛ اسرائيلو۱۱۰ جوماتونه ، ۸۳ ښوونځي او۲۷ روغتونونه هم په نښه اوله منځه يې يوړل ؛يواځې الشفا روغتون اسرائيلي جنګي طيارو ۵ ځلې بمبار کړ . دهاګ

نړیواله محکمه او دجنیوا کنونسیون دواړه پدې خبرې یوه خوله دي چې عبادت ځایونه ، تاریخي مقامات روغتونونه او ښوونځي به په جنګ کې نشي په نښه کولای اوچې کوم هېواد داسې وکړي فوځي اوملکي مشران به يې جنګي مجرمين ګڼل کېږي .

دلته اسرائيلو داهر څه وکړل ؛ ۱۱۰ جوماتونه ، ۸۳ ښوونځي ،او۲۷ روغتونونه یې په نښه کړل ؛ دجولاي په ۲۵ مې نېټې يې دملګرو ملتونو ښوونځی هم په نښه کړ چې پکې ۱۵ کوچنيان شهيدان او۲۰ ټپيان شول ؛ دملګروملتونو سرمنشي بان کي مون دې پېښې په رسمي غندنې بسيا وکړه نورپدې ټول وحشت دملګر ملتونو اداره ، اروپايي اتحاد يادبشر دحقوقو دساتنې ټېکداره امريکاچوپه خوله پاتې شوه .



دهاګ نړيواله اداره څه شوه ؟ دبشر د حقوقو؛ دانسانانوترمنځ متقابل احترام ؛ مذهبي ازادۍ اوانساني مساوات خبرې چرته ولاړې؟ دامنيت شورى څه شوه ؟

که په اسلامي نړۍ کې چرته دنامسلمانوپه ښه کې ازغی هم لاړشي نودملګروملتونواداره ،اروپايي اتحاد اودبشر دحقوقوپه نوم نړيوالي ټولې اداري په يواوازمتحر کې شي اودلړ کيو دحقوقودساتنې په نوم اسلامي هېوادونه دجغرافيايي ويش پورې هرهغه څه ته اړباسي چې زړه يې غواړي ؛ په غزې کې چې داسرائيلوله لورې ټوله غزه په کنډوالې بدله او داسې انساني قتل عام رمنځته شوی چې دبشر دحقوقونړيوالي اداري نه نيولې داسرائيلو دبدنامې جاسوسي اداري موساد دېخوانو مشرانو پورې ټول وايي چې داستر بشري جنايت دی نو اسرائيل ولې جنګي مجرمين ونه ګڼل شول؟ دې ستر جنايت ته يې ولې تروريستي عمل نه ويل کېږي ؟ نړۍ ولې دوئ ته يهودي تروريستان نه وايي ؟

بلکې برعکس امريکا داسرائيلووحشي حملې رواعمل ګڼلاوبيا بيايې داسرائيلو سر دمرستې کولو امادګي هم ښکاره کوله ؛ د امريکا ولسمشر بارک اوباما او د اروپائی اتحاد غړ هېوادونو خو اسرائيلو د وحشت نه د حمايت په لړ کې لا دمخه ويلي دي چې دا دخپل ځان ن داسرائيلودفاع ده او اسرائيل د خپل ځان نه د دفاع حق لري .

همداراز کابودوه نيم کلونه وړاندې چې وحشي بوداياونوپه برماکې دمسلمانانو سره څه وکړل هغه ټول دټولې نړۍ مخې ته دي اوپرې ښې ډېرې ليکنې خپرې شويدي ؛ مسلمانانوهيڅ جرم اوګناه نه وه کړې اونه هم ورته څه پلمه جوړېدله خودبرمانه دمسلمانانو دويستلوپاره ديومنظم پلان له مخې ددولت تر سرپرستۍ لاندې خونخواروبوداياونوپه ټول هېواد کې پر مسلمانانو حملې پيل کړې دمسلمانانو ملکيتونه يې لوټ کړل په سونوکلي ،مدرسې اوجوماتونه يې وروسوځول ، ټول يې نورو هېوادونوياپه هېواد کې دننه ځنګلونواودښتوته په هجرت کولومجبور کړل ؛دکوچني ، ستر ،ځوان ،بوډا ، ښځې اونر دامتيازپرته يې نه يواځې داچې دمسلمانانو قتل عام وکړ بلکې ژوندي يې هم وسوځول ؛ دنړيوالوله لورې دخپروشويو ارقامولـه مخې دبوداياونوپه لاس دوژل شويومسلمانانوشمېر ۲۵ زروته رسېدلی و؛ له ۱۰ زرو زيات ترېتم شول اود۵ زرونه زياتې مېرمنې دجنسي تېريوښکارشوې ؛ مسلمانان چې ددې خاورې اصلي اوسېدونکي دي اوبودايان له نوروسيمودلته راغلي اومېشت شويدي همدې بوداياونو دولت اوولس په شريکه چې ددې هېواد نه دټولومسلمانانو دويستلوپه هدف دادومره ستروحشت رامنځته کړ دې وحشت ته ولې تروريستي عمل نه ويل کېږي ؟ داوحشيان ولې بودايي تروريستان اودسزا وړ نه بلل کېږي ؟ څه شوه دنړۍ دامن اودبشر دحقوقوټېکداره امريکا اونوره غربي نړۍ اوڅه شوې ددوئ نړيوالې اداري ؟

د منځنۍ افريقا په ،،کار،، نومې هېواد کې چې دهمدې ۲۰۱۴م کال په پيل کې په کومې بې رحمۍ دمسلمانانو قتل عام وشو يقيناًټولې انساني ټولنې اوپه ځانګړې توګه مسيحي نړۍ ته ډېر شرمونکی او ددې وړ دی چې د اوښکو پرځای پرې دستر ګو نه وينې توی شي ، د ۲۰۱۳ په مارچ کې دمسلمانانو ،، سليکا،، نومې ګوند پدې هېواد کې واک ته ورسېد او ددې ګوند يو مشر ،،ميکال جوتوديا،، ددې هېواد ولسمشر شو چې ورسره سم دمسلمانانو پرضد دمسيحيانو د راپارولو لپاره ټول لوېديځ او خصوصاً فرانسې دا تبليغات پيل کړل چې مسلمانان ددې هېواد په واک مسلط کېدل غواړي ؛ بس ددې خبرې درامخې ته کېدل و چې ددې هېواد نه دمسلمانانو دجرړو ويستلو په موخه د هماغه مارچ دمياشتې نه مسيحيانو په مسلمانانو وسله وال بريدونه پيل کړل ، د ۲۰۱۳ ددسمبر په ۵مې نېټې پدې هېواد کې دامن او سولې راوستلو په نوم ۱۶۰۰ فرانسوي فوځيان ددې هېواد پلازمېنې بنګويې ته راښکته شول ، دفرانسوي فوځيانو ترڅنګ دلته داروپائی اتحاد ۱۰۰۰او

دافریقایي اتحاد ۴۴۰۰ سوله ساتي فوځیان هم دلته راغلي وو چې دهمدوئ دفشار په نتیجه کې دهېواد مسلمان ولسمشر ،،میکال جوتودیا،، د ۲۰۱۴ کال دجنورۍ په ۱۰ مې نېټې په هېواد کې دامن راتللو او پر مسلمانانو دحملو بندېدلو په شرط استعفی ورکولو او دهېواد نه بېرون تللو ته هغه مهال اړ شو چې کله دفرانسوي فوځیانو او افریقایي مرکچیانو په وساطت دهغه نه دمسیحي ملېشو له لوري دواک نه دلرې کېدلو او دهېواد پرېښودلو غوښتنه رامخې ته شوه.

،،میکال جوتودیا،، دالیګزینډر فرډیننډ په مشرۍ کې عبوري اداره جوړه کړه؛ پخپله یې استعفی ورکړه؛ واک یې عبوري ادارې ته پدې شرط وسپارلو چې په راتلونکي کې به ازاد انتخابات ترسره کېږي او سمدستي به د ،، اینټي بلاکا ،، په نوم دمسیحي وحشي ملیشو له لورې پر مسلمانانو حملې ودرېږي.

خو متأسفانه چې دنوموړي مسلمان ولسمشر داستعفی نه پس چې اصل واک مسیحي ملېشو ته په لاس ورغلو نه یواځې دا چې پر مسلمانانو حملې ونه درېدلې بلکې دبهرنو فوځونو ترچتر لاندې ښه زیاتې او خورامنظمې شوې؛ دفرانسې او افریقایي اتحاد فوځیانو به دمسلمانانو دمال ځان او عزت دساتنې لپاره دهڅو پر ځای دروان وحشت ننداره کوله او ضمناً به یې مسیحي ملېشې دمسلمانانو پرضد لازیات ظلم او وحشت ته هڅولې ځکه چې فرانسویان خو هسې هم مسیحیان دي دافریقایي اتحاد دلته راغلي فوځیان هم دروندا، بروندې او ځنې نورو هېوادونو مسیحیان دي چې مسلمانانو ته یواځې دشر رسولو تمه ترې کېدای شي اوبس.

دپلازمېنې هنګویې په شمول دهېواد په مختلفو برخو کې په زرونو یاسونو په شمېر کې ډلې ډلې وحشي مسیحیانو وسلې ،چړې، خنجرونه او کوتکونه په لاس په مسلمان مېشتو سیمو یرغلونه کول، دکوچني، ستر، ښځې او سړي دامتیاز پرته په کورونو کې دننه او دتېښتې په حالت کې په لارو کوڅو کې له هرډول وېرې پرته یې ښه په بې دردۍ مسلمانان وژل، کورونه او ملکیتونه یې سوځول ؛ دوژل شویو مسلمانانو جسدونه یې سوځول او په اوردسوځول شویو مسلمانانو دوریتو شوو جسدونو نه به یې لکه دسپو په خپلو خولو غوښې رابېلولې او ښه په مینه به یې خوړلې.

دفرانسې مشهورې ورځپاڼې ،،لافرانسوا،، په خپل یو خپور کړي راپور کې اعتراف کړی وچې دفرانسوي فوځیانو په شتون کې د محتاطو اندازو له مخې دهېواد په پلازمېنې بنګویې کې دوژل شویو تنانو شمېر ۱۰ زرو ته رسېږي او دپلازمېنې نه بهر دهېواد په مختلفو برخو کې د ۵ زرو نه زیات تنان وژل شویدي حال دا چې دمسلمان ولسمشر داستعفی ورکولو او دهېواد پرېښودلو په صورت کې مسیحي ملېشو مرکچیانو ته پر مسلمانانو دحملو نه کولو اطمینان ورکړی و.

پدې هېواد کې دځای ÀÀÁÂÃÄÀ AĀÁĂÅÅĀ Å ÁĂÅĀÂA نومي اسلامي تنظیم مشر شیخ احمدالمثل رسنیو ته ویلي دي چې: دفرانسوي فوځیانو په شتون کې دمسلمانانو عامه وژنې ډېرې پوښتنې راولاړې کړیدي ؛ مسیحي ملېشو پر مسلمانانو هغه مهال په خلاص مټ سترې حملې پیل کړې کله چې دفرانسې، افریقایي اتحاد او ملګرو ملتونو دامن فوځ دلته راغلو او دافریقایي مرکچیانو په منځګړیتوب مسلمان ولسمشر استعفی ورکړه ؛ نو داسې ښکاري چې دا هر څه دیو پلان له مخې شویدي ،،

دنړیوالو ادارو له لورې دخپرو شویو راپورونو له مخې دپلازمېنې په شمول دهېواد په یوې برخې کې هم مسلمانان په خپلو کورونو کې ندي پاتې، یا خو مسلمانان دوه بهرنو هېوادونو چاډ او کیمرون ته کډه شوي او یا هم پخپل هېواد کې دیو نه بل ځای ته تللي دي چې دبې ځایه شویو ټولوشمېر یو میلیون ته رسېږي؛ یواځې دهېواد هوایي ډګر ته دیو لکو نه زیات مسلمانان راجمع شویدي.

دهیومن رایټس په شمول دبشر دحقوقو نړیوالې ادارې وایي چې دمسلمانانو شتمنۍ چې په لوړ مقدار لوټ کېږي، کورونه یې ورانېږي، هجرتونو ته اړ کېږي، او قتل عام یې روان دی که دا هر څه همداسې روان وي نو ډېر ژر به دا هېواد دمسلمانانو نه خالي شي او دلته به بیادمسلمان په نوم لګکي څوک نه پېژني.

آزاد اژانس آل افریقا داټ کام پخپل یو راپور کې لیکلي وچې مسیحي ملېشې مسلمانان دبسونو او نورو مسافرو وړونکو موټرو نه راکوځوي په تورو او خنجرونو یې وهي لایې ساه نه وي وتې چې دوئ یې دخوراک لپاره له بدن غوښې پرې کوي او یاورباندې تېل پاشي او ژوندي یې سوځوي بیا یې دبدن غوښې پرې کوي او دحاضرو وګړو ترمخه یې خوري ؛ مسلمانان چې پیاده له سیمو

وځي دهغوئ هم همدا حال دی، چې پدې متمدنې نړۍ کې هم دلته دآدم خورۍ باب پرانستل شوی او دپرانستل کېدو سره سم عروج ته رسېدلی دی .

نړیوالو رسنیو هم خپله اسلام دښمني ښکاره کړه، دا دمسلمانانو او مسیحیانو ترمنځ په نښتو او فساداتو تعبیروي حال دا چې دا دیو اړاخیزې حملې او دیو منظم پلان له مخې ددې هېواد نه دمسلمانانو دنابودۍ لپاره دوحشت یو خورا خطرناکه لړۍ ده.

عجیبه دا ده چې ددې آدم خورو مشر ،، اوندجامنګلور،،دمسلمانانو دعامه وژنې او ددوئ دغوښو خوړلو نه یواځې دا چې اعتراف کوي بلکې فخر هم پرې کوي خوپه ټولې نړۍ کې څوک داسې نشته چې ترې ددې جرمونوپوښتنه وکړي یاورته سزاور کولوغوښتنه وکړي .

نړۍ ولې پدې ستروحشت چوپتیا غوره کړه ؟ دېته ولې تروریزم نه وایې ؟ که تروریزم دا نه وي نوبل به څه وي ؟ دمسلمانانو هغه جهاد چې دانساني ټولنې لپاره سراسرخیر دی ؛انسانانوته پکې دناروا کوچنې تکلیف رسولوتصور شتون نه لري اودفطرت له قوانینونه دباغیانوپرته پکې دچاپرضد دسره اقدام نه کېږي زموږ داجهاد چې کومه کفري نړۍ تروریزم ګڼي اوانسانانوته دانسانانو دغلامۍ نه نجات ورکونکي اوځمکې ته دعدل اوانصاف نظام راوستولو په لارکې قرباني ورکونکي دحقې لارې مجاهدین مسلمان تروریستان بولي داکفري نړۍ ددوئ دبشر دحقوقوپه نوم فعالې اداري ؛ نړیوال محاکم ؛دملګروملتونوادره دامنیت شوری اوپه اسلامي نړۍ کې ددوئ غلامان څه شول ؟ ولې ددوئ دوحشت نه ډک داعمل تروریزم نه ګڼي ؟ ولې دوئ په مسیحي تروریستانو نه نوموي ؟ ځکه چې داوحشت دمسلمانانو پرضدترسره شوی کفري نړۍ که څه هم په خوله نه وایې خوحقیقت دادی چې داسلام حقیقي شکل اوخصوصاجهادتروریزم ګڼي اواسلام ته ژمن ټول مسلمانان اوپه ځانګړې توګه مجاهدین تروریستان بولي ؛ خوبرعکس دمسلمان اواسلام پرضدکه هرڅومره ستروحشت رامنځته کېږي هغه هم دتروریزم لاندې نشی راتلای .

موږپوهېږو چې کفري نړۍ دمسلمانانو دنسل کشۍ پخه اراده کړېده ځکه خو دوسطي افریقا نه تربرما اودسنګیانګ نه ترفلسطین پورې په ډېرې بې دردۍ دمسلمانانوداسې قتل عام روان دی لکه چې دوئ بېخي انسانان نه وي خوله نېکه مرغه چې پر اسلامي نړۍ دمسلطو حاکمانو دبې حسۍ او جفا پدې ستر عالم کې مسلمان ځوانان دغفلت له خوبه رابیدار شویدي ، ددښمن دټولوحیلو،مکرونو، اوپلانونونه خبردي اودمخنیوي په لاروچارویې پوهېږي ؛ ددیني احساس نه برخمن دي ؛ اسلامي غیرت لري؛ دین، دیني شعایرو او نوامیسو ته دوفا بې مثله او نه هېرېدونکی تاریخ یې جوړ کړاوجوړوي یې ؛ داسلامي نړۍ اجتماعي بې حسۍ دوئ ناهیلي نکړل ؛یقین لري چې فاتح حق اوصداقت وي او وروستۍ فتحه دهغه چاپه برخه کېږي چې دقدرت له تائید نه برخمن او احساس او عزم یې نه ماتېدونکی اونه تسخیرېدونک وي .

مسلمانوځوانانودګولیوو او بمونو په باران، دبارودو په طوفان، په ولګې، قحط، ورانیو او هجرتونوکې ژوند تېرول یې زده کړل ؛ داغیارو دپلانونونو او دخپلو منافقو حاکمانو دپنجو نه دځان ویستلو لارې یې وموندې او دا یې زده کړه او نړۍ ته یې وښودله چې خپل مظلومیت او مغلوبیت څرنګه دقربانیو په زور په طاقت بدلولی او خپل درد ته څرنګه دوا موندلی شي؟

په تېرو۳ لسیزوکې دقائدینو په شمول په ملیونو مسلمانانو خپل ځانونه قربانۍ ته وړاندې کړل خو دسیمې مسلمانانو ته یې دذلت نه دراوتلو ستر جوهر جهاد او شهادت ور په ګوته کړل ؛نن داسلامي نړۍ دهر بچې په غوږونو کې دجهاد او شهادت دشعارونو اذانونه کېږي؛ عظیمې مېندې خپلوبچوته داسلام، ملت، خاورې او دیني شعایرو نه ددفاع په لار کې دایثار او قربانیو درسونه ورکوي ځکه خو دستر و ظلمونو ؛ دنړیوال کفر دمسلسلو سازشونو او دمسلمانو دحاکمانو دپرلپسې جفاګانو او غداریو سره سره هم په مسلمان ملت کې دخپلوټولو خاورودازادۍ اوداشغالګرودشړلو احساس ورځ تربلې زیاتېږي؛ دنر، ښځې، ځوان بوډا او کوچني دامتیاز پرته نن دهر مسلمان دا شعار دی چې دخپل سر نه به تېر شي خو په خپلوپاکو ځمکو به دکفارو ناپاکه قبضه ونه زغمي اودخپلې خاورو دلوښت لوښت دازادۍ لپاره به خپل جهاد جاري وساتي ؛ دغاصبې کفري نړۍ نه دازادۍ همدا یوځنی لاربولي اونړۍ یې چې په هرنوم نوموي پروایې نه لري داخپله فریضه ګڼي ؛ دافریضه دسرونو په قربانیو ژوندۍ اودتن په وینوتازه ساتي .

# د اطاعت او فرمانبرداری بیلګې !

ژباړه عبید تنویر

هسې هم اطاعت اوفرمانبرداری ، له عشق اومحبت څخه سرمشق او منشاء اخلي ، خو دحضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ، یارانو او مبارکو اصحابو دغه عشق اومحبت ته چې هغه له رسول الله سره ریښتیني مینه وه ، اطاعت ته به یې په ټول قوت داسې رانګل چې نه به یې دمرګ پروا ساتله نه د دردانو هم ددې دنیا دکوم عیش اوعشرت !

داطاعت او حقیقي مینې یوښکاره او تلپاتې یادګار راځي. دحضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ، دیوه مخور صحابي حضرت سعدبن معاذ( رض ) په هغو خبروکې ملاحظه اووینو چې دبدر له جنګ وړاندې خپل لارښود صلی الله علیه وسلم ته دسرښندنې اوباور رکولو څه ډول کلمات ، ډالی کوي ، په داسې مهمو حالاتو کې چې حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ، دمهاجرو اوانصارو له قبیلو څخه دبدر په غزا کې دپوره شرکت ژمنې اخلي اوپه عین وخت کې ، دانصارو شرکت اومرستې ته زیات امیداوضرورت ووینې .

سعدبن معاذ وایي : زه دانصارو قبیلې په استازیتوب خبرې کوم او دهمدې قبیلې له لورې ځوابونه هم وایم !

ای دالله رسوله ! هرځای ته چې غواړې سفروکړه ، دهرچاړشتې چې غواړې قطع اویایې برقرارې کړه ، زمونږ له مالونو اودارایيو څخه چې څومره غواړې هغه پورته کړه اوڅومره چې مناسبه بولې هغه پرېږده ، زمادې په الله تعالی سوګند وی چې مونږ ته داغوره اومحبوبه ده چې ته زمونږ ټولې شتمنی اومالونه واخلې او هیڅ څه راته پرینږدې ، ته چې هرحکم کوې مونږ به درسره اودهغونونکې ووسو ، په الله قسم که ته خپل سفردومره اوږد کړې تردې چې ( برک غمدان ) چې دعربودجزیرې منتهی برخه وه ، هغوپورې هم ورسیږې ، مونږ به هم رکابه اویوځای درسره یو ، که ته مونږ ته ووایې چې په دریاب ځانونه لاهو کړی ، له هغه به دریغ ونکړو او مخ به وانه ړو !

دصحابه کرامو داطاعت بله غوره بیلګه هغه وه ، چې حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دهغو دریوتنو( کعب بن مالک ، مراره بن ربیع ، هلال بن امیه ) په حق کې چې دتبوک له غزا څخه یې ځان غړولی وو ، دمدینې منورې مسلمانانوته امرصادر کړی چې له هغو سره به خبرې نکوي !

صحابه کرامو له دریو واړو سره له یوې مخې خبرې بندې اوقطع کړې ، تردې چې دمدینې ځمکه یې په هغوئ سره تبی وګرځوله .

کعب بن مالک وایي ، خلکو له مونږ سره ۵۰ ورځې ، داسې چلنداورویه خپله کړه چې مونږ ته دمدینې ځمکه اواسمان نااشنا بریښیده ، داسې فکر مو کاوه چې اوس داهغه ځمکه ، اسمان او خلک ندي ، چې لدې وړاندې مونږ پیژاندل .

کعب وایي : کله چې ځمکه نوره راباندې تنګه شوه ، نو دخپل ترور ځوی ( ابوقتادة ) کورته ورغلم اوپه دروازه کې ورته ودریدلم ، ورته مې وویل چې ای ، ابوقتادة ! ته له ماسره ولې خبرې نکوي ، اوستادې په الله قسم وي چې تاته نده معلومه چې زه له الله اودهغه له رسول سره څومره مینه

اومحبت لرم ، کعب وايي مادغه خبره درى کرته ابوقتادة ته تکرار کړه ، په اخير کې هغه راته صرف دومره وويل چې (الله اعلم ورسوله )

کعب وايي دخپل ترور ځوى له دغه ځواب سره مې له سترګواوښکې رواني شوې اوترينه ولاړم .

کعب زياتوي ، په دې سربيره چې مسلمانانو کلکه فاصله راته نيولې وه، په دغسې يو غمجن حالت کې درسول اکرم صلی الله عليه وسلم ، قاصد راورسيداو حکم يې راته ابلاغ کړ چې له خپلې ميرمنې څخه هم بستره جداکړه ، قاصد ته ماوويل چې تنها بستره جداکړم که طلاق هم ورکړم ، قاصد راته وويل چې نه صرف بستره ترينه جداکړه !

کعب وايي : دمديني په ښار کې يوه ورځ ګرځيدم ، چې يوقبطي سوداګر په ماپسې راروان دې ، زه يې کناره کړم اوراته يې وويل چې زه له شام څخه راغلی يم مديني ته مې تجارتي توکي راوړي وو ، خودشام دغسان قبيلې حاکم ماته ستاپه نامه يوليک راکړى چې درته يې وسپارم او ځواب يې بيرته له ځان سره يوسم ،په ليک کې راته ليکل شوي وو چې مونږ خبرشوي يو چې له تاسره ستاملګرو اومسلمانانو زيات بد ! چلند غوره کړى او قطع علاقه يې درسره کړې ،ته هغوى نور پرېږده اومونږ ته پناه راوړه ، دلته به ازاد ژوند وکړې او ډېرعزت اومکافات به درکړو

کعب وايي ، کله چې مادغسان واکمن ، ليک ولوست نوله ځان سره مې وويل چې دايوبل مصيبت دى چې ورسره لاس اوګريوان شوم ، نو



سمدلاسه مې ديوتنور په خوا ورمنډه کړه اوليک مې وسوځاوه .

کعب وايي ، پنځوس ورځې ورسته چې کله دتوبې ايت نازل شو ، ما دمديني دغره (سلعه ) په لمني کې خيمه ځان ته وهلې وه اوهلته اوسيدلم ، هلته يو ډله خلکو منډې راوهلې اوپه مايي دتوبې دقبليدو زيرې وکړل .

دغه راز ، په يوبل روايت کې راغلي ،چې دبني المصطلق له غزا ورسته ، دانصارو او مهاجرو ترمنځ څه خبرې ښکته پورته شوې ، ابی بن سلول چې په نفاق کې مشهور وو اوله زړه يې ايمان نه وو راوړى ، داخبره له خولې راوبستلې وه چې لئن رجعنا إلى المدينة ليخرجن الأعز منها الأذل، يعني که چيرې مديني ته بيرته وګرځيدونو عزيزخلک به ذليل خلک خامخا وباسي ،

حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ،حضرت عبد الله بن أبي بن سلول ، راوغوښت اوورته يې وويل چې اى ، عبدالله ! ته خبريې چې ستاپلار څه خبرې کړې ؟

عبدالله ورته وويل چې نه ، يارسول الله ، زما مور اوپلار دې له تانه قربان وي څه يې ويلي : حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ورته وويل : چې ستاپلار ويلي چې مديني منورې ته چې وروګرځو، نو دعزت او مقام څښتنان به ذليل خلک له مديني څخه وباسي ، ! ! عبدالله ورته وويل چې اى دالله رسوله ! زما پلار رښتيا ويلي ، ځکه ته عزيزيې او هغه ذليل دى ، ديثرب خلک ماپيژني چې زه څومره دخپل پلار مطيع اوفرمانبرداره يم ، خوزمادې په الله تعالی قسم وي، که دالله او دهغه درسول ،خوښه وي ، زه به دخپل پلارسرله تنې جداکوم او دالله درسول مخ ته به يې ږدم حضرت رسول الله ﷺ ورته وويل چې نه خيرداسې مکوه .

کله چې مديني منورې ته مسلمانان ورسيدل ، عبد الله بن أبي بن سلول، خپله توره راوويستله او دخپل کور په دروازه کې ودريداوپلارته يې اجازه نه ورکوله چې کورته دننه شي ، ورته يې وويل چې تاويلي وو چې مديني ته وګرځوو نو عزيزخلک به ذليل خلک له مديني وباسي ، زمادې په الله قسم وي چې اوس به زه تاته داحقيقت درونبيم چې عزت ستا په لاس کې دى ، که دالله تعالی اودهغه درسول صلی الله عليه وسلم په لاس کې ؟ ترهغو پورې به دکورسيورى رانه ونه وينې اوداخل به نشي چې دالله رسول ص درته اجازه ونکړي .

دعبدالله پلار چيغې وهلې چې اى خلکو او دخزرج قبيلې اوسيدونکو راشئ وګورئ اوس زماځوى ماته خپل کورته دننوتلو اجازه نه راکوي !

بيادخزرج قبيلې مشران راجمع شول او حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ته ورغلل او ماجرايې ورته بيان کړه ، هغه بيا عبدالله ته پيغام راواستاوه چې خپل پلار ته دننوتلو اجازه ورکړي .

# فرهنګي جهاد!!



مفتي شاهد حقاني

فرهنګ او جهاد دواړه بېلابېلې کلمې او بېلا بېلې معنا ګانې ورکوي ؛فرهنګ دقلم ، کتاب ، کاغذاو ژبې پر محور راڅرخي او جهاد دتورې ، ،غشي ،نېزې اوټوپک په مدارچورلې ؛فرهنګ او کلتور د بزم ،ترنم او شاعرانه عواطفو خورلنی ارمغان کوي، خــو جهــاد د رزم،حماســیاتواو داتلانوپه ولولــوایزو تکبیرونــواو ګړ لړزونکیــو اوازانکو مورچلونه تودوي ؛فرهنګ هنري تخلیق، خو جهاد د سرو وینوپه ډنډ کې لامبو وهل او دشهادت غېږې ته پناه وړل دي ، .چې دادومره لیرېوا بعادو او قطبونو ته حسن امتزاج ورکول او دفرهنګ او جهاد بعیدالمعنی کلمو ته د(فرهنګي جهاد)مانوس ترکیب ورکول، دیوه داسې قلموال ،شاعر ،مترنم او د رزم وبزم داقدارو اوموازینو متحمل مجاهد په شخصیت کې شونې دی، چې هم فنان ، هم ژورنالست اوهم لیکوال او شاعروي، اوهم د ګڼارو دېرغل په وړاندې دمورچلونو اتل وي ،چې ددې ډول اشخاصو ډېرې ژوندې بېلګې په روان جهاد او مخکیني هغې کې ډېرې لرو، چې څښتن تعالی واړه صفات پکې ځایه کړي دي .دلته چې دفرهنګي جهادسکالو ددې اړتیا لري، چې وښیو چې آیا رښتیا هم فرهنګي مورچل دجهاد یو څوا کمن سرحد دی ،او له فرهنګي مورچل نه هم پر کڼارو دغشوورول دټوپک او تورې غوندې شرعي ارزښت لري که څنګه ؟نو مودې اړتیا ته په کوېږې داسې پیل وکړ:

دیوې الهي فریضې په توګه، جهادهغه دیني وجیبه ده، چې له امله یې مسلمه امت دسرلوړی او اعزاز معراج ته خېژي او په پرېښودلو یې بیا مسلمانان د اذلال او خوړتیا ژوروته لولیږي ،داهسې خیال بافي نده او نه هوایي خبره ده، بلکې دا هغه حقیقت دی ، چې دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه ددې حدیث شریف نه په ډاګه معلومیږي چې فرمایي : عَنِ ابْنِ عُمَرَ! قَالَ"أَتَى عَلَيْنَـا زَمَـانٌ! وَمَـا يَـرَى أَحَدٌ مِنَّا أَنَّهُ أَحَقُّ بِالدِّينَارِ وَالدِّرْهَمِ مِنْ أَخِيـهِ الْمُسْـلِمِ! وَأَنَـا فِي زَمَـانٍ الدِّينَارُ وَالدِّرْهَمُ أَحَبُّ إِلَيْنَا مِـنْ أَخِينَـا الْمُسْـلِمِ! سَـمِعْتُ رَسُـولَ اللهِ ﷺ !يَقُولُ"إِذَا ضَنَّ النَّاسُ بِالدِّينَارِ وَالدِّرْهَمِ! وَتَرَكُوا الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللهِ !وَلَزِمُوا أَذْنَابَ الْبَقَرِ! وَتَبَايَعُوا بِالْعِينَـةِ سَـلَّطَ اللهُ عَلَـيْهِمْ بَلاءً لَمْ يَرْفَعْـهُ حَـتَّى يُرَاجِعُـوا (رواه معجم طبراني مشکولاج۱۴ص۱۰} ژباړه :حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایي : چې داسې وخت مونږ باندې راغلی و،چې زمونږ څخه به هیچا دا فکر نه کاوه، چې دا به په دینار او درهم کې له خپل مسلمان ورور نه ډېر حقدار وي ،او زه اوس په داسې زمانه کې یم ، چې دینار او درهم مونږ ته دمسلمان ورور نه ډېر ګران او محبوب دی ،اوما له حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلې دي ،چې فرمایل به یې : کله چې خلک په دینار او درهم باندې بخل کوي (په وجوه الخیر کې نه مصرفوي )،او دالله تعالی په لاره کې جهاد پرېږدي ،او غواوو له لکیو سره ځانونه ملتزم کړي ،(دا کنایه ددې نه ده چې جهاد پرېږدي او زراعت او دهقاني پیل کړي )او په لیرې نیټه یوه مبیعه وپلوري او بیا یې په لږو معجلو پیسو ترې همدا مبیعه وپیري ،نو الله جل جلاله به پرې بلا نازل کړي ،ترهغې پورې به یې ترې نه پورته کوي،څو پورې چې دوئ بېرته مراجعه ونکړي (خپل دین ته )

قرآنکریم کې الله جل جلاله ډېر ځله همدا سې مسلمانان مخاطب کړي دي چې : { انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِـأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِـكُمْ فِي سَـبِيلِ اللهِ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ} ..ژباړه :تاسوجهاد ته لاړشئ،(خفاف او ثقال )او دالله تعالی په لاره کې جهاد په مالونو او ځانونو سره وکړئ ،دا به تاسو ته غوره وي ، که چیرته تاسو پوهیږئ . په( احکام القران لابن عربی ج۴ص۳۱۱ )کې یې د(ثقال او خفاف ) لس معنی ګانې کړي :۱–دځوانی او کهولت په وخت کې ،۲–دزلمیتوب او سپین ږیرتوب په وخت کې ،۳–دیسر او عسر په حالت کې .۴–دفراغت او شغل په حالت کې ،۵–دکسالت او نشاط په حالت کې ،۶–سپاره او پلي ،۷–صاحب صنعت او داسې چې صاحب صنعت نوي ،۸ د زورړتیا او بې زړه توب په وخت کې ،۹–دعیال خاوندان او هغه څوک چې عیال نلري ،۱۰–ثقیل یا ټول لښکر ، خفیف او مقدمة الجیش .

ترکومه ځایه چې دجهاد دتداوم موضوع ده نو هغه خوله احادیثو څخه ډېره روښانه ده، چې تر قیامته پورې به جهاد جریان لري ،لکه یوحدیث شریف کې راځي چې . . . .والجهاد ماض إلى يوم القيامة مذ بعث الله محمدا صلى الله عليه و سلم إلى آخر عصابة من المسلمين لا ينقض ذلک جور جائر ولا عدل عادل . . . . (المعجم الاوسط لابي القاسم الطبراني ج۵ص۹۵) یعنې جهاد به ترقیامته پورې روان وي ،له هغه وخته چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په پیغمبرۍ مبعوث شوی ،دمسلمانانو تر وروستۍ ډلې پورې به وي،نه به یې د ظالم ظلم اونه دعادل عدل نقض کړای شي .

دقرآني نصوصواو نبوي ارشاداتو په رڼا کې علماوو جهاد څوانواعو ته ویشلی دی، یوجهاد (بالنفس ،جهاد بالمال،جهاد باللسان او بل جهاد بالقلم ،جهاد بالتحرض،جهاد بالبيان،جهاد بالاعداد. . . . . . .اونور دي . موږ چې دلته دې لیکنه کې فرهنګي جهاد باندې شرح ور کوو ،همدا دبیا ن او قلم جهادې برخه یې موضوع بولواو په همدې محور به یې څرخوو!

که څه هم په قرآن کریم کې چې کله دجهاد کلمه ذکر شي ،نو موخه ترې همدا وسله وال جهاد او قتال فی سبیل الله وي ،قلمي یا فرهنګي جهاد ترې هلته نوې مراد، خو دنورو احادیثو څخه بیا دا دفرهنګي جهاد ډولونه معلوم دي ،په (احکام القرآن للجصاص ج۴ص۳۱٦)) کې ددې آیت په تفسیر کې لیکلي چې (**فقاتل في سبيل الله لا تكلف إلا نفسك وحرض المؤمنين فأوجب عليه فرض الجهاد من وجهين أحدهما بنفسه ومباشرة القتال وحضوره والآخر بالتحريض والحث والبيان** """"! په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې دجهاد فریضه په دوه وجوهو سره واجب شوه، یو په نفس او مباشرت بالقتال او بل دمسلمانانو په ترغیب ، تحرض او بیان سره ،یعنې دویم ډول دجهاد دادی ،چې مؤمنان جهاد ته تشویق شي ،ددوی لپاره دجهاد فضائل او دمتخلف عقوبات بیان کړای شي ، نو دا هم دجهاد برخه ده ،چې نن سبا دبیان لپا ره که دجوماتِ منبر او محراب شته دی ،تردې وروسته نورې جدیدې وسیلې ، دقلم ،صحافت ،غږیزو او برېښنایي ذرایعو او نورو رسنیو لارې هم ډېرې اغیزمنې دي ،خلکو چې عصري تعلیما تو ته مخه کړې او لوستې زیات دي، نو د کتاب ،قلم ،اخبار ،مجلې او نورو برېښنايي رسنیو لارې دجهاد دتبلیغ او تحرض ته ډېرې مؤثرې دي .

په (احکام القرآن للجصاص ج۴ص۳۱۶) کې دحضرت انس رض ددې حدیث نه په ډا ګه ښکاري چې دټولو ممکنه لارو نه دجهاد مشروعیت ثابت دی، لکه داچې :(**عن أنس بن مالك أن رسول الله ﷺ قال جاهدوا المشركين بأموالكم وأنفسكم وألسنتكم**) له نقل نه وروسته لیکي : **فأوجب الجهاد بكل ما أمكن الجهاد به وليس بعد الإيمان بالله ورسوله فرض آكد ولا أولى بالإيجاب من الجهاد وذلك أنه بالجهاد يمكن إظهار الإسلام وأداء الفرائض وفي ترك الجهاد غلبة العدو ودروس الدين وذهاب الإسلام** """" لخلص مطلب :حضرت انس رض فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي ،چې تاسو له مشرکینو سره په مالونو ،ځانونواو ژبو سره جهاد و کړئ ،دې حدیث کې دمشرکینو خلاف په ټولو ممکنه لارو جهاد واجب شو،په هره ممکنه وسله جهاد لازم شو،له ایمان نه وروسته د جهادنه مؤکد فرض او لومړنی واجب بل نشته ،داځکه چې په جهاد سره داسلام اظها ر اودفرایضو ادا کیږي ،او دجهاد په پرېښودلو سره دښمن غلبه مومي او اسلام په خلکو کې ضعیف کیږي .دتفسیر جصاص له تحقیق نه ښکا ره وبرښیدل ،چې دمشرکینو پرخلاف دجهاد ټولې حربې استعمالولای شي ،چې په هغې کې دفرهنګي هڅو ډله ایزو تبلیغاتي وسایلو استعمال هم شامل دی او ملکې نن سبا همدا مطبوعا ت او رسنۍ د کفا رو پرخلاف دمجاهدینو اغیزمنه وسله ده ،قلمي او لساني جهاد دمسلمانانو په ذهنیت جوړونه کې خورا مهم نقش لوبوي او اشغالګر ترې نشي محفوظ کیدای . په احکام القرآن ج۷ص۳۰۲) کې لیکلي چې : **والجهاد بالنفس على ضروب منها الخروج بنفسه ومباشرة القتال ومنها بيان ما افترض الله من الجهاد وذكر الثواب الجزيل لمن قام به والعقاب لمن قعد عنه ومنها التحريض والأمر ومنها الإخبار بعورات العدو وما يعلمه من مكايد الحرب وسداد الرأي وإرشاد المسلمين إلى الأولى والأصلح في أمر الحروب** """""خلص مفهوم :جهاد بالنفس په څو ډوله دی :یو دادی چې پخپله مباشرة قتال کې برخه واخلي ،بل دادی چې دجهاد دفضایلو په باب او هم دتا رکینو دجهاد په هکله تقا ریر ،موعظې او بیان وکړي ،بل قسم یې دادی چې خلک ور ته وهڅوي ،تشویق ،ترغیب او تیزیې کړي ،داهم یکې دي، چې ددښمن پټ را زونه مجاهدینو ته ورسوي ،ددوئ جنګي پلان او نقشه باندې مجاهدین خبر کړي ،په غښتلي رأیه مجاهدینو مشوره ته لازمه ور کول، دمسلمانانو ښې جنګي او جهادي لارې ته رهنمایي کول هم دجهاد برخه ده . .

که و ګورو نۍ معاصره دنیا کې د لساني بیان اوفرهنګي جهاد خواته د بیان او دعوت له لارې بلل ډېر اسان شوي ،تر ټولو اسانه ذریعه یې مطبوعات دي ،چې هره خبره په څو ثانیو کې دنړۍ تر کونجونو پورې رسوي او همدا چاپي او برېښنایي ډله ایز یا جمعي وسایل دي ،چې دمجاهدینو دفتحې او برې هره تا زه او توده پیښه دثانیوو په ضرب کې تر شرق او غربه رسوي او هم ددې لارې نه جهاد ته دخلکو بلل ،او دیوې الهي فریضې په توګه یې په خلکو منل ،فرهنګي رسنۍ په ښه او اسانه طریقه ترسره کولای شي .

په (احکام القران ج۷ص۳۰۲) کې داسې لیکي چې : فإن قيل فأي الجهادين أفضل أجهاد النفس والمال أم جهاد العلم قيل له الجهاد بالسيف مبني على جهاد العلم وفرع عليه لأنه غير جائز أن يعدوا في جهاد السيف ما يوجبه العلم فجهاد العلم أصل وجهاد النفس فرع والأصل أولى بالتفضيل عن الفرع. . . . . . .یعنې که څوک پوښتنه وکړي، چې جهاد بالنفس او بالمال غوره دی ؟ که جهاد بالعلم ؟ځواب به یې داوي چې جهاد بالسیف یا په

پە تورە او ټوپک جهاد، پە جهاد بالعلم باندې مبتني او دهغې فرع دە، ځکە دا نا روادە، چې پە علم کوم څە واجب وي او پە جهاد بالسيف کې دې ترې تجاوز وشي، نو علمي جهاد اصل او جهاد بالنفس فرع دە او اصل پە فضيلت کې لە فرع نە اولی او غورە وي.

د(احکام القران) ددې تحقيق څخە جوتە شوە، چې علمي او فرهنګي جهاد څومرە افضل دی او مرتبە يې دنفس او مال پە پرتلە څومرە دە، داصحيح دە، چې اصلاً لە جهاد نە پە نصوصو کې مباشرة يا پە تورە او مال جهاد لومړنی معنا دە، خو کە يوە مجاهد تە دجهاد فضايل او دتارک عقوبت نوي معلوم، نو ګرانە بە وي، چې رګونو کې يې تر هرڅە وړاندې دجهاد رواني يا روحياتي قوە متحرکە او فعالە شي او پە لومړي وهلت کې دې استشهادي حملې تە چمتو شي، يادې ددومرە سرو او سپينو پە مقابل کې دخپل ګران او قيمتي بدن نذرانې تە تيار شي، همداسې کە دمجاهد دګوزار سرە همهالە دخبر رسولو او يا ددې برید دابعادو پە شنلو کې کومە فرهنګي سټە نە وي، چې نړيوال يا عام ولس ددې برید پە ارزښتونو قانع کړي، نو بە څنګە څوک ددې برید پە مؤثريت او اغيز پوە شي او کلە بە دنړۍ شتمن ددې سپيڅلي لارويانو تە بسپنې يا مالي تمويل تە وهڅيږي، څوې دنني بريدونو غونډې دلوړو لګښتونو مصارف پورتە کړي او ديوە مجاهد د ټوپک، کارتوس اونورو تجهيزاتو اړوندې اړتياوې ورتە پورە کړي.

نن پرمختللې نړۍ کې ميديا يا دپلە ايزې رسنۍ ديوە غښتلې حکومت څلورمە قوە تشکيلوي، لکە څنګە چې اجرائيە، قضائيە او مقننە درې ګونې حکومتي قوې، ديوە حکومت ترکيبي عناصر وو، نن سبا پە اصطلاح ماډرن نړۍ پدې قانع شوي، چې تبليغاتي وسايل يا مطبوعات يې بايد څلورمە قوە وي، معاصرې نړۍ چې نن دپلە ايزو تبليغاتي وسايلو مؤثريت، قوت او اغيز کتلی، نو دې نتيجې تە رسيدلې چې فرهنګ او کلتور تە بايد پە څلورمە قوە وکتل شي او هماغومرە لګښتونە پرې وکړای شي، څومرە چې ددې دريواړو کليدي حکومتي قواوو پر ماموريتونو راځي، اسلامي شريعت هم ددې حقيقت څخە انکار نکوي او ددوئ نە پە ډير قدر فرهنګي او کلتوري ارزښتونو تە ګوري، مخصوصاً دفرهنګي جهاد پە برخە کې چې څومرە ارشادات، اشارات، او دلالات پە نصوصو کې ددې لاربسوونە کوي، چې مسلمانان بايد پە ټولو هغو امکاناتو چې هغە فرهنګي وي او کە نور وي، ددښمن مقابلە وکړي، لکە شعر او ترانە چې يو شاعر يا ترانە ويونکی پە خوا ږە غږ ووايي، دمنبر دواعظ لە دعوتي جهاد سرە څومرە هماهنګ کيږي او څومرە ډير دمسلمانانو روحيات جهاد تە سوقوي، همداسې ورځپاڼە، مجلە، مهالنۍ، برېښنايي پاڼې، جهادي ويډيويي انځورونە او نور ژورنالستيک او خبري ليکنيز چاپي يا برېښنايي مواد دفرهنګي جهاد هغە لارې او ذرايع دي، چې دجهادي مورچلونو پە استحکام او قوت کې ډير رول او نقش لوبوي اودا نن سبا داسې يو حقيقت دی، چې څوک ترې ستر ګې نشي پټولای. پە (اصول وتاريخ الفرق الاسلامية ج١ص٥)

کې دا سې ليکي: ... وکما قال الشيخ بکر أبو زيد –حفظه الله– فی "الرد علی المخالف من أصول الأسلام" وهو عنوان کتاب له: أما إنه من أبواب الجهاد لحديث أنس أن النبی –صلی الله عليه وسلم– قال: **جاهدوا المشرکين بأموالکم وأنفسکم وألسنتکم !١!"**

... والجهاد بالقلم فرع من الجهاد باللسان، بل هو أبلغ وأعم فائدة.

**""" أما إنه من أبواب الجهاد لحديث أنس أن النبی # ﷺ# قال$ جاهدوا المشرکين بأموالکم وأنفسکم وألسنتکم !١!""" والجهاد بالقلم فرع من الجهاد باللسان، بل هو أبلغ وأعم فائدة"**

خلص مفهوم: لکە څنګە چې داهل بدعو او اهل اهواء پە خلاف بيان او ددوئ نە داسلامي شريعت حمايت لە جهاد څخە دی، شيخ ابوبکر ابو زيد رص هم فرمايي: چې داموضوع چې دا دجهاد برخە دە، دحضرت انس رضی الله تعالی عنه لە روايت نە معلوميږي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: لە مشرکانو سرە پە مالونو، ځانونو او ژبو جهاد وکړئ... او پە قلم سرە جهاد کول، دادهغە جهاد څخە چې پە ژبە دی، يوە فرع دە، بلکې دا قلمي جهاد دژبني او لساني جهاد نە ډير ابلغ او ګټور دی، دلتە پە ډير صراحت معلومە شوە، چې کە څە هم حديث کې لساني جهاد ذکر شوی او قلمي ندی ذکر شوی، مګر نن سبا دلساني غونډې قلمي جهاد ډير مؤثر دی او پە قلم او ژبە داسلام او جهاد ننګە کول، جهاد او دمحاربو دښمنانو هجوه او مخالفت کول، چې ورتە فرهنګي جهاد وايي، دجهاد يوە مهمە سترە برخە تشکيلوي.

پە(الجامع الحکام القران للقرطبی ج٨ص١٥٣) ددې آيت کريمە پە تفسير کې چې وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ليکلي دي چې: **روی أبو داود عن أنس أن رسول الله صلی الله عليه وسلم قال٪&جاهدوا المشرکين بأموالکم وأنفسکم وألسنتکم$$وهذا وصف لأکمل ما يکون من الجهاد وأنفعه عند الله تعالی"$فحض علی کمال الأوصاف، وقدم الأموال في الذکر إذ هي أول مصرف وقت التجهيز"$فرتب الأمر کما هو نفسه.**

يعني امام قرطبي ليکلي: چې داحديث چې (تاسو پە مالونو، ځانونو او ژبو سرە جهاد وکړئ) دا يو داسې وصف دی، چې پە اکمل ډول پکې دجهاد کولو صفت بيان شوی دی او دالله تعالی پە نزد ښە انفع دی، نو داص يې دکمال اوصافو تە وهڅاوه، يعني پدې دريو لاروجهاد کول، دالله تعالی پە نزد غورە دی او دادرې ذرايع دجهاد مؤثرې لارې دي، ژبە هم دجهاد دريمە برخە ونومول شوە، چې دفرهنګي جهاد مرکزي ذريعه او دقلمي جهاد چې دواړە سرە لازم وملزوم دي او يو دبل شارحې هم دي، نو فرهنګي جهاد

کله په ژبه ، کله په قلم او کله په نورو کلتوري لارو صورت نیسي او ډیر منصوصي دلایل دي، چې دفرهنګي جهاد دجواز او مشروعیت لپاره پرې استدلال کیږي .

دفرهنګي جهاددمشروعیت او فرضیت په باب (تفسیر روح المعانی لاسماعیل الاستانبولي ج۶ص۱۶۵) کې دیوه حدیث په شرح کې داسې لیکي **قال الإمام الراغب !"المجاهدة تكون باللسان واليد وفي الحديث"! جاهدوا الكفار بأيديكم وألسنتكم "وفي حديث آخر"! جاهدوا المشركين بأموالكم وأنفسكم وألسنتكم "قوله"! وألسنتكم أي أسمعوهم ما يكرهونه ويشق عليهم سماعه من هجو وكلام غليظ ونحو ذلك كما في" مشارع الأشواق#**

**يقول الفقير"! ويجوز أن يكون الجهاد بالألسنة بترك المداهنة في حقهم وإغراء الناس على دفع فسادهم كما أن الجهاد بالأموال بالدفع إلى من يحاربهم ويستأصلهم.**

ژباړه او خلص مطلب :امام راغب رح فرمايي چې مجاهده کله په ژبه او کله په لاس سره وي ،په یوه حدیث کې فرمايي چې تاسو له کفارو سره په لاسونو او ژبو جهاد وکړئ او بل حدیث کې راغلي ،چې تاسو له مشرکانو سره په مالونو ،ځانونو او ژبو جهاد وکړئ ،داقول چې (والسنتکم) په مشارق الاشواق کې وايې چې : ددوئ غوږونو ته هغه څه ورسوئ، چې دوئ کفار او مشرکان يې بد ګڼي ،او پدوئ یې اوریدل سخت تماميږي ،چې هغه ددوئ هجوه ، تریخ کلام او نور داسې څه دي، چې ددوئ غوږونه پرې ځيګيږي ، فقیر وايي چې لساني جهاد ددوئ په حق کې دمداهنت ،دوستۍ او سستۍ په پرېښودلو سره دی او همداسې لساني جهاد ددوئ دفساد ددفع په منظور دخلکو اغراء او ورماش کول دي، په پیسو سره جهاد داسې دی، چې ددوئ دمحاربې مخه پرې ونیول شي او ريښې يې وایستل شي .

دابو القاسم السلمي الشافعي په (احکام الجهاد وفضائله) کتاب کې دژبنې جهاد په هکله داسې لیکي چې :$**وَأَمَّا الْجِهَادُ بِاللِّسَانِ فَهُوَ الْمُخَاطَبَةُ بِمَا فِيهِ مَصْلَحَةُ الْجِهَادِ كَالْإِعْلَامِ** "اه) يعني ژبنې جهاد کې هغه څه چې دجهاد مصلحت وي ،مقابل طرف ته خطاب دی ،لکه فرهنګي او نشراتي هڅې ؛دلته هم په ډاګه ده دفرهنګي خپرنیزو ټولنیزو وسایلو یادونه وشوه، او دجهاد باللسان تصویر همدا فرهنګي جهاد او د کفارو پر خلاف نشراتي جهاد ته وویل شو ،یعني مجاهد فرهنګیان به خپلو لیکنو او شعرونو کې د کفري ښکیلاک ددسیسو او پلانونو په وړاندې داسې قلمي پنځوني کوي، چې ددین دفاع او منځ کې يې دکفارو لپاره زهرجن توکي نغښتل شوي وي ،فرهنګیان به خپله قلمي ژبه دېر غلګرو مشرکانو خلاف دتورې غوندې کاروي او په وړاندې به داسې مطالب لیکي ،چې دوئ ته پرې آسیب او درد ورسیږي او ددوئ هجوه او قبح پکې بیان شوي وي ،همدا فرهنګي جهاد به ددوئ غرور له تابه پرېباسي او درواغجن مکر او کید به یې خلکو ته ښکاره شي .

خولکه څنګه چې مطبوعات په فرهنګي جهاد کې بارز نقش لوبوي، همداسې شعر او ترنم هم دفرهنګي جهاد هغه برخه ده ،چې ولسونو کې دبیداری او ویښتیا روحیه پیاوړې کوي او په غورځنګ یې راولي . دبشریت سترلارښود حضرت محمد مصطفی ﷺ لا خوارلس سوه کاله مخکې دیوه مسلمان شاعر ذوقي پنځوني او له تخیل نه زیږیدلي حماسي کلام یا شعر ته د(حکمت) جامع او له محتوي ډکه کلمه کارولې وه، ((ان من الشعر لحکمة (بخاري))چې حدیث پوهان (حکمت) دعلم ،هغه ربښتني وینا چې له حق سره پیوندوي ،عدل ، ګټور کلام چې له جهالت څخه پکې ژوغورنه وي کړي ده ،همداسې به په مسجد نبوي کې حسان بن ثابت ؓ ته داسلام پیغمبر حضرت محمد ﷺ خپله منبر ودراوه ،او حسان ؓ به پرې له رسول الله ﷺ نه دشعر په ژبه دفاع کوله او رسول الله ﷺ به دحسان بن ثابت ؓ په هکله ویل چې (روح القدس) دحسان تأیید کوي$$**وكان النبي صلى الله عليه وآله وسلم ينصب له منبرا في المسجد ،يقوم عليه قائما ينافح عن رسول الله صلى الله عليه وآله ،ورسول الله صلى الله عليه وآله يقول!"ان الله يؤيد حسانا بروح القدس ما نافح عن رسول الله صلى"الله عليه وآله# ٪**چې همدا بشارتونه دیوه مسلمان او ژمن شاعر دمقام داوچتوالي لپاره بسنه کوي او ښايي دروح القدس همدا تأیید وي، چې شعر یې دخلکو سینو کې ولولې او دسوزونکي اور بڅرکي ښندي .

شعر چې کله د ترنم په هیجاني قالب کې واچول شي ،نو اغیز یې بیا لکه دسمندر ري څپو ویده زړونه له خوابه را ویښوي او دخپلو عواطفو په پلوشو کې یې رانغاړي ،شعر یا کومه جهادي ترانه چې مترنم په خواږه غږ زمزمه کړي ،نو لکه دبلالي ؓ اذان دخلکو په سترګو کې داوښکو سیندونه بهوي او اوریدونکي یوې بلې دنیا ته له ځانه بوځي ،دا ځکه چې یو خو فطرتاً خوږ غږ په اوریدونکي اغیز ښندي او بل پکې دافغانستان غوندې دربریدلي ولس آهونو انعکاس کړی وي او سربیره پردې دخپلو اسلافو شهسواري او اتلولي یې غومې زیږوي او دده اسلامي غیرت کې ساه پوه کوي .

پای کې به خبره پدې جملو رالنډه کړو چې دمالي او ځاني یا بدني جهاد غوندې فرهنګي جهاد چې دلساني جهاد مصور او ممثل دی ،د کفري لښکرو په وړاندې اهم او اغیز يې دومره ډیر دی، چې کفري لښکري ترې ستومانه او دمقابلې توان يې نلري ،اسلامي شریعت فرهنګي یا تبلیغاتي جهاد ته مشروعیت او اهمیت ور کوي او یو فرهنګي مجاهد دمورچل دمجاهد نه کم نه بولي ، دده دقلم سیاهي دمجاهد دوینې نه کمه نه ارزوي ،چې دهمدې څخه یې مقام او حیثیت څرګندیږي !



دهیواد له نومیالي ، سیاسي څېړونکي اوعلمي شخصیت محترم **ځیلواک صاحب** سره دځرک مجلې ځانګړې مرکه

## که نظامي فشار په موثر ډول نور هم جاري وساتل شي نو دامریکا د اډو شتون اودکابل درژیم بقا دواړه ناشوني ګرځي

# طالبان په دومره سختو اوستونځمنو شرایطو کې

## دا فرین وړدي چې خپل نشرات په یونه یو ډول جاري ساتي



پوښتنه : امریکایانو دافغانستان خورې ورې پوځي اډې له اکثرو ولایتونو څخه ټولي کړي ،اودامریکاولسمشر په صراحت وویل چې نور دطالبانوپه مقابل مخامخ جګړه نکوي خوورسره غبرګ کله ناکله دیوبل ګال لپاره هم په افغانستان کې دخاصوپوځي عملیاتو دترسره کولو ډرامې غږوي ، تاسې دامریکایانو، اوسني فوځي حالت او ستر تیژي څنګه ارزوی ؟

ځواب : امریکا له یوې خوا غواړي چې دغه ستونځمنه اوپرمصرفه جګړه پای ته ورسوي اونورله دې مصیبته ځان خلاص کړي، ځکه چې دې جګړې دامریکا جنګي اواقتصادي ماشین څو لسیزي شاته بولی، خوله بلې خوا هغوي داهڅې هم کوي چې دهغوي په لاس جوړشوي رژیمونه دي پایښت وکړای شي.

امریکایان چې کله افغانستان ته راتلل نودوي فکر کاوه چې په ګال دوه کې به دافغانستان دننه له جګړې ځان خلاص کړې اونوربه دسیمې هیوادونوته دیو ګواښ په توګه افغانستان پرخپل فوځي مرکزبدل کړي، خوجګړه له یوې لسیزي هم ور واوښتله اودلته امریکا درانه پوځي ،مالي او رواني تلفات ولیدل ،امریکا دغرورله بامه راښکته شوه اودمفاهمت چیغې یې شروع کړې، امریکایانود کمونیزم نه وروسته داسلام په وړاندي په پیل شوې جګړه کې ترټولو زیات زیان په افغانستان کې لیدلی،له همدې امله له دې جګړې نه دخلاصون پرهره لاره غور کوي ددوي لوړی هڅه داده چې دامریکا دیرغل داخلي ملګري که هغه په فوځي برخه کې دي اویانوروبرخو کې دي په افغانستان کې فعال وساتي ،خوامریکایان په دې پوهیږي چې ددوي په لاس جوړشوی نظام اوبرخوال یې ددوي له حضوره پرته وا کمن نشي پاتې کیدای،بل خوا امریکا په سیمه کې دخپلو اقتصادي اوفوځي ګټو اوهمدارازدسیمیزو رقابتونودپاللو لپاره په افغانستان کې ترخپله وسه خپل حضور صفر ته راښکته کول نه غواړي له دې سره سره چې جګړې ته ادامه هم نشي ور کولای،نوهغوي هڅه کوي چې لږه ترلږه په اول قدم کې خپل عسکر له فزیکي جګړې لیري وساتي اودفزیکي جګړې قربانیان صرف افغانان وي اودوی یې تریو وخته په هوایي بمبارسره ملاتړو کړي.

په لنډ ډول به ووایو چې امریکا اومتحدینویې په افغانستان کې نوره مستقیمه جګړه پای ته رسولې ،یوازې ددې نظام دبقا اودیوڅو اډو دشتون په فکر کې دي،خو که نظامي اوسیاسي فشارپه موثر اوهنرمندانه ډول جاري وساتل شي اونورهم زیات،موثر اوقوي شي نوداډوشتون اودنظام بقا دواړه ناشوني ګرځي.

دیو کال لپاره دیوڅه څواک پریښودلو هدف هم همدغه دي، ترڅو پر نظام د مقاومت فوځي فشار کم کړي او د اړو په وړاندې جدي خطرونه کم کړي، خو دلته به د یوې اړې شتون هم د امریکا د فوځي حضور په معنا وي، ځکه چې دغه اړې که له یوې خوا د سیمې هیوادونه تر ګواښ لاندې راوستل غواړي، خو بل پلو ته د خپلو پلویانو په مرسته افغانانو ته تهدید دوي، چاپې اچوي، بمبارونه کوي افغانان په هراړخیزه توګه توهینوي، نو بیا به د دغو اړو شتون زموږ پر خاوره او ولس له تجاوزه پرته بله څه معنا ونه لري، نو ځکه به دغه اړې همیشه د مقاومت تر فوځي فشار لاندې وي، لکه څنګه چې په بهرنیو اړو څو ځله کامیابه بریدونه وشول د له چې مقاومت کوونکي د هر ډول حصار په شتون کې اړو ته ننوتلی شي او هلته بریالي عملیات ترسره کولی شي، په همدې استدلال موږ ویلی شو چې بهرني اړې دلته خوندي نشي پاتې کیدای.

**پوښتنه:** په دې ورستیو کې د امریکا سنا مجلس په یوه راپور کې ومنله چې سي ای اې په افغانستان او نورو هیوادونو کې مسلمان زندانیان سخت شکنجه کړي، د تحقیقاتو په مهال یې د هغوی د دیني او انساني حقوقو ډول ډول خلاف ورزی او سپکاوی ترسره کړی، سي ای اې هم دغه ټول جنایتونه منلي، خو ویلي یې چې داهر څه یې د امریکا د پخواني ولسمشر بوش په امر کړي، تاسې د امریکایانو د دغه انکشافات څه ډول ارزوي ایا دوی اوس، په خپلو کړغیړنو کړنو ندامت ښيي او که د خپلو جنایتونو له یادولو نور لذت اخلي؟

**ځواب:** امریکایانو د زندانیانو په وړاندې د بشر په تاریخ کې بې ساري شکنجې کارولي، د زندانیانو د ذهني، رواني او جسماني اذیت لپاره یې ځانګړې ټیکنالوژي کارولې، ځکه خو یې موږ د بشر په تاریخ کې په بې ساري شکنجو نوموو، له کومو بندیانو سره چې خبرې شوې هغوی داسې صحنې بیانوي چې انساني عقل ورته حیرانیږي، په دې اړه په ډیر لوړ شمیر اسناد شتون لري، زه به یوازې یوه بیلګه وړاندې کړم:

یو بندي وایي چې یو ډول تنګ تابوت کې به یې بند کړم، په تابوت کې یوه داسې اله وه چې دومره اکسیجن یې تولیداوه چې زه به پرې نه مړ وم او نه ژوندی، بیا به یې دغه تابوت په بحر کې خوشې کړ، تابوت به څو ورځې تر اوبو لاندې پروت و، چې تابوت به یې کله خلاص کړ، زه به پوره په حال کې نه وم او تر هفتو هفتو به په خبره سم نه پوهیدم، ګنګ او بې خوده به وم... څوک چې له دې ډول شکنجو ژوندي پاتې شوي هغوی په دایمي ډول په ذهني او جسماني توګه معیوب دي...

اصلا د امریکایانو تاریخ داسې دی، چې هغوی هیڅکله خپلو مخالفینو ته په بشري حقوقو قایل نه دي، پر فلسطینیانو د اسرائیلو هر ډول بشري تیری امریکا تل د غندلو پر ځای تایید کړي او دا یې د اسرائیلو حق ګڼلی.

اوس چې سي آی اې د امنلې نو دا یې مجبوریت دی، ځکه چې په دې اړه د بندیانو خاطرې، اسناد او شواهد افشا شول، کتابونه پرې ولیکل شول، امریکایان غواړي چې نړیوال وغولوي چې ګني په دې کې د امریکا واکمن او ملکي اداري ښکیلې نه دي او دا کار سي ای اې په خپل سر کړی، خو حقیقت دا دی چې داهرڅه د حکومت په امر او منظم پلان ترسره شوي او روان دي، خو څرنګه چې امریکا ځان په نړۍ کې د بشري حقوقو سرخیله معرفي کوي نو ځکه غواړي چې خپل جنایات په دې ډول توجیه کړي چې دغه اعمال د امریکا د ټول حکومت پالیسي نه، بلکې یوازې یوه اداره پکې ښکیله ده، خو حقیقت داسې نه ده، امریکا همیشه د بشري حقوقو ډنډوره یوازې د خپلو مخالفینو په وړاندې د یوې حربې په توګه استعمال کړې، پخپله یې د بشري حقوقو هیڅ باک نه دی ساتلی

**پوښتنه:** د کابل د اوسنی اداري، په راتګ سره په کابل ښار او نورو سیمو کې د طالبانو له لوري درانه او مسلسل بریدونه روان دي او له اداري یې هغه د چا خبره وار پار خطا کړی، خو د کابل چارواکي د دغو بریدونو شاته د ګاونډي هیواد پاکستان لاس دخیل بولي، ستاسې تحلیل په دې اړه څه دی؟

ځـــواب : رښتیاهم ورستیو بریدونو پربهرنیوځواکونو دروند رواني اغیز شیندلی او اوس دلته په کابل کې هیڅ بهرني ځان محفوظ نه احساسوي، که هغه فوځي خلک دي، که استخباراتي خلک دي او که سیاسي خلک دي، ځکه داډول دقیق اهداف په نښه کول او هغه هم په حساسو او ترامنیتي څارنې لاندې موقیعتونو کې، دجګړې نوې او جالبه بڼه څرګندوي، ځکه سړی ویلای شي چې دجګړې داډول نوعیت مخنوی نه لري، بلکې تاکتیکونه یې نورهم ځواکمن کیدای شي او که مقاومت کوونکي دغه ډول بریدونه نورهم دقیق کړي او دملکي زیان امکانات صفرشي نوعامه ذهنیت یې هم تاییدوي.

افغانستان یوداسي اسلامي هیواد دی، چې دلته دعقیدې اوفکرپربنسټ لکونو انسانانوسرونه قربان کړي، هجرتونه اوهرډول کړاوېې پرځان منلی، دلته داسي تبلیغات ګټه نه کوي چې عامه ذهنیت یې تر اغیزلاندې نشي راتلای، که څوک ووایي چې په کابل کې بریدونه اسلامي سخت دریځي کوي اوغواړي چې خپل هیواد دیرغلګرو له ولکې نه ازاد کړي نوداډول خبربرید کوونکي نشي بدنامولی که څه هم واقعت لري، خو که په برتانیه اویو کوم بل اروپایي هیواد کې پرچا داسلامي سخت دریځي تورپوري کړای شی نودهغه ځای عامه ذهنیت یې مخالف ګرځي، ځکه خوهلته داډول توري دتبلیغاتوبرخه ده، اما په افغانستان کې دلویدیځو اوځایي لویدیځ پاله رسنیو لپاره دخپلو مخالفینو دبدنامولو لپاره دپروپاګند اسانه او اخیري حربه داده چې دهغوي هرډول مقاومت اوفوځي عملیات ګاونډیانوته منسوب کړي، چې له دې لارې هم عامه ذهنیت ګمراه کړي او هم دسیمې دهیوادونو ترمینځ تلپاتي شخړې رامینځ ته کړي، ترڅو هرهیواد بیل ددوي مرستې ته اړوي.

پـوښتـنه : په دې ورستیو کې دفرانسي فرهنګي مرکز په کابل ښار کې ترفدايي برید لاندې راغی اوطالبانویې پړه هم پرغاړه واخیسته، غربیان او سیاستوال په دغسي فرهنګي مراکزو بریدونه سم نه بولي اوغیرې فوځي یې ګڼي، ستاسې په اند په رښتیا هم په دغه ډول مراکزو کې هغه ډول فرهنګي هڅي اوخدمتونه چې افغانان ورته ضرورت لري شتون لري او که دپردې ترشا نورڅه هم شته ؟

ځـــواب : امریکا اویوشمېرمتحدین یې دفوځي جګړې ترڅنګ دلوړکچ په فکري جګړه هم بوخت دي، امریکا اویوشمیر اروپایي هیوادونه په افغانستان کې له تیرودیارلسو کالو راهیسې دیوه لویدیځ پاله غیرمتدین نسل دروزلو لپاره پراخ مصارف کوي او مراکزیې جوړکړي دي، چې په ظاهره یې تعلیمي، فرهنګي او هنري عنوانونه ورکړي، خوپه دونیا کې هیڅ څوک هم دفکري جګړې اغیزترفوځي جګړې کم نه ګڼي

پـوښتـنه : شک نشته ، چې امریکایانو او۴۹ اشغالګرو هیوادونوپه افغانستان یرغل راوړی ،د۱۴ کلونوپه اوږدو کې یې په لکونو مظلوم افغانان له تیغه تیر کړل ، دوه میلونه افغانان یې په ناترسه زندانونوکې شکنجه کړل اوو کړول ، داسلامي مقدساتو اوافغاني روایاتویې په کراتو مراتو توهین اوسپکاوی وکړ، خو په مقابل کې دهغو قلموالو مشهوروخیرواولیکوالا چې یووخت یې دجهاد، اسلام او استقلال په نارو قلمونه تاند اوژبې لمدي وي ، خوپه اوسني روان حالت اویرغل باندې یاسخت سکوت اویاهم عملا دغه اشغال توجیه کوي اویوه لنډه پلمه داوایی چې که امریکایان اوناټو نه وي نو بیا ممکن ګاونډیان مداخله وکړي اوهغه هم یوډول اشغال دي ،تاسې دغو تفاوتونواوبرداشتونوته په کومه سترګه ګوری ؟

ځـــواب : دجهاد، استقلال او اسلام په نوم دوه ډوله خلګودعوت چلولی، یوهغه خلګ و، چې دباد رخ اودتلې سرته یې کتل اویو وخت چې یې په همدې ډول لیکنو جیبونه اوګیډې ډکیدې اوشخصي مصالح یې پکې وو، نودبې روحه پرزوپه خیریې دحالاتو له ماشین سره حرکت کاوه، خودروزې دسوړې له بدلیدوسره یې ژبه اوقلم هم بدل شول ، دغه ډله خلګ هر وخت

دحالاتوله بدلون سره بیا بیا هم بدلیدای شي، چې له بده مرغه دغه ډله خلک ډیرهم دي

اویوهغه ډله ژمن اودفکر اوعقیدې پیرو خلک و، چې لیکنې او وینا وي یې دخپل فکر اوعقیدې پربنسټ وي، نه دشخصي مصالحو اومادیاتوپربنسټ، نوهغوي په یونه یو ډول بیا هم پرخپل دریځ پاتې دي، البته یوشمیریې دځینومجبوریتونو له امله سکوت کوي خوډیریې بیاهم پر کاربوخت دي، اماځنګه چې مقتدره میډیا اورسنۍ دیوه جهت په تسلط کې دي، نوځکه زیات نه ځلول کیږي، خویو وخت به ضرور همداسي حالات رائحي چې دهغوي غږبه ځوا کمن کیږي.

داچې که ناټو اوامریکانه وي نوکاونړیان ممکن مداخله وکړي....زه نه پوهیږم دا کوم منطق دی، چې عملي اشغال دیوې احتمالي مداخلې لپاره ومنل شي!

یوه خبره یاد ولرئ چې هیڅکله ناټو اوامریکا دافغانستان دپیاوړتیا اواستقلال لپاره نه جنګیږي اونه دلته دهمدې لپاره راغلي دي، یوخوهغه افغانان چې مقاومت کوي هغه افغانان دي اوپه داخل کې مقاومت کوي، هغوي ته دبل مداخله ویل یوائحي تبلیغاتي مجبوریت دی، کنه په دې امریکا اوناټوهم پوهیږي.

خوکه یووخت په رښتیاهم کوم سمیزهیوادپه رښتیني ډول په افغانستان کې دمداخلې اراده وکړه، نوهغه به دناټو او امریکاپه پټه اویاښکاره غوښتنه وي اوبیابه یې همدغه خلک چې داحتمالي مداخلې وړاندوینه کوي هغه وخت ترځنګ ولاړوي اوهرکلی به یې کوي.

بل پلوته کوم مقاومت کوونکي چې دنړې دیوستر طاقت داشغال په وړاندې بریالي جګړه کولاي شي اوددې اشغال له خوا هیڅ ډول رعایت ته سرنه ټیټوي، هغه به بیادبل نسبتا کمزوري هیوادمداخله ځنګه وزغمي؟

اوکه څوک دسمیزوهیوادونوسره دښمنې کول غواړي نوداهم دافغانانو په ګټه نه ده، بلکې سمیزهیوادونه په هراړخیزډول دولسونوپه کچه له یوبل سره تړاولري اویوبل ته اړتیالري.

دافغانانوساتنه اودافغانستان دځمکنۍ بشپړتیا ساتنه دامریکا په پالیسي کې نسته، امریکایان دلته پخپلوګټوپسې راغلي دي اوهغه افغانان چې دوي روزلي دي، ددوي ترلاس لاندې دي اوددوي ګټوته وفاداردي هغوي ته یې ددې هیوادحکومت په لاس ورکړی، دغه تش په نامه واکمنان دامریکا له خوښې پرته نه څه کولای شي اونه څه ویلای شي

**پوښتنه :** په طالبانو دایواعتراض واردیږي چې سوله ییزه تګلاره نلري اوزیات ترکیز په جنګ اوجګړو کوي اوهم له افغاني لوري یعني کابل ادارې سره خبروته نه تیاریږي ، تاسي دغه نیوکې ترکومه بریده پرځای اوروان بحران ته یې دحل یوه لارګڼې ؟

**ځواب :** دسولې کلمه دلته ترډیره دیوې تبلیغاتي حربې په توګه وکارول سوه، په واقعت کې دسولې کوم حقیقي صورت نشته.

زه دطالبانو دا دریځ ښه بولم چې دمفاهمت لپاره یې دروازې پرانستلې دي، همدارازیې له امریکایانوسره دبندیانو دتبادلې اونورو مسایلوپه اړه ځیني کامیابه مذاکرات هم وکړل، خودیو رښتیني افغاني حل څرک بیاهم نه لګي، هغه څوک چې پرطالبانو پړه اچوي هغوي دسولې دواقعي صورت اودمسایلوعمق ته متوجه نه دي.

که طالبانو دیوجوړاوخپلواک افغان حکومت په وړاندې دځیني داخلي ستونځوپرسرپاڅون کړی وای نوبیابه له دغه حکومت سره خبرې کول دسولې په معنا وی، اما اوس چې یوخارجي قوت په زور راغلی پرهیوادیې فوځي یرغل کړی، دهیوادحکومت یې په زورنسکورکړی اوبیایې له ځانه سره

څو لاس پوځي راوستلي دواکمنوپه توګه يې دلته کينولي، نواوس به دسولې مفهوم څه وي؟ اياهغه يرغل چې دقوماندې مزې له امريکاسره ده، بل څوک يې دپاى ته رسيدو واک لري؟

زه فکر کوم دسولې صورت هغه وخت تمثيليداى شي چې امريکايان په بشپړه توګه افغانستان خپل اختيارته پرېږدي، ټول نظامي ځواکونه وباسي اوپرته له کومه فشاره افغانان پرېږدي، چې دخپلې خوښې نظام جوړ کړي، خوله بده مرغه امريکايان في الحال داسي اراده نلري، ځکه هغوي دلته په يونه يوډول خپل نظامي حضورغواړي، دخپلې خوښې اوتر واک لاندې نظام غواړي، دهمدې لپاره يې پرخپلو لاسپوڅو تړون امضا کړ، ترڅو په افغانستان کې هرهغه څه وکړي چې زړه يې غواړي، که څه هم امريکايان نوردمخامخ جګړې پاليسي بدلوي خودافغانستان پريښودلوته ليواله نه ښکاري، البته دفوځي فشار اوموثرمقاومت په صورت کې به ښاي دهغوي دغه تګلاره تغيروکړي.

دسولې کلمه دلته ترډېره ديوې تبليغاتي حربې په توګه وکارول شوه، په واقعيت کې دسولې کوم حقيقي صورت نشته

اياهغه يرغل چې دقوماندې مزې يې له امريکاسره دي، بل څوک يې دپاى ته رسيدو واک لري؟

پوښتنه : تاسې ته بهتره معلومه ده ، چې امريکا اوغرب په افغانستان کې دخپل يرغل اوجګړې دتوجيه اوحمايي لپاره زرګونه رسنى اودتبليغاتو قوي دستګاوي استخدام اوپه کاراچولي اوهره مياشت په ميلونو ډالرلګوي اوپه مقابل کې طالبانوته دهيڅ ډول مطبوعاتي مبارزي حق هم نه ورکوي ، ستاسي په فکر په دغسې ضيقو شرايطو کې دطالبانوفرهنګي مبارزه څومره کاميابه اومقبوله درته ښکاري ، اومشوري مو په دې برخه کې ورته څه دي ؟

ځواب : امريکايان لکه څنګه چې دبشرحقوق هغه ګڼي، چې يوازي ددوي په ګټه وي، همدارنګه دبيان ازادي هم هغه ګڼي چې ددوي په ګټه وي، مقابل لوري ته دبيان دازادي پرحق قايل نه دي.

بل پلوته په دې کې هم شک نشته چې امريکا روانه جګړه ۵۰ فيصده په تبليغاتوپرمخ بيايي، په ميليااردونو ډالرمصرفوي، موثره ټيکنالوژي کاروي اودهمدې تبليغاتوپرمټ يې يوه ستره طبقه ګمراه کړه

دطالبانوايکې يوه ويب پاڼه ده چې ددوي اعلاميې اوخبرونه خپروي، هغه ته هم خارجيان هميشه تخنيکي ستونځي جوړوي. يعني تبليغات خوپرېږده چې هغوي خپل اواز رسولو ته هم نه پرېږدي ، سيمه ييزي رسنۍ ټولې ديوه اړخ په ولکه کې دي، يواځې دبريدونومسئوليت دطالب وياند له خولې خپروي، هغه هم ددغو رسنيو يوضرورت دي.

خوبياهم په دومره سختو اوستونځمنوشرايطو کې طالبان دافرين وړدي چې خپل نشرات په يونه يوډول جاري ساتي، خوداباید کافي ونه ګڼل شي، بايد دموثرو مطبوعاتو لپاره هر اړخيزې هڅې وکړي، ډيرڅه ممکن دي، چې تراوسه نه دي شوي، بايد دموثرې ميډياغم وخوري.

نن هره کاميابه جګړه ترشا کاميابه ميډياغواړي، په دې لاره کې هرډول کوشش اوابتکارته اړتياده




# نن او پرون

څرک داسلامي امارت دنشراتي ارګان په توګه له تېرودوو لسو کلونو راهيسي خپله نشراتي مبارزه په مخ وړي اوپه دې لاره کې يې له دوولسو کلونو راهيسي هيڅ ځنډ اوځنډ ونه پېژاند، غواړم د کالګېږې په مناسبت دترلاسه شوي فرصت نه په ګټه دمجلې په هکله دپرون او نن په اړه څه ووايم دغه راز دهغه لوري اومقاومت په اړه هم څه راسره دي چې دغه مجله ورته منسوب ده .

وايي چې له نورو وچو ځمکه داسيايوه ځانګړنه په دې کې هم ده چې دلته دازادۍ خوځښتونه دنورو په نسبت زيات دي، ښکاره ده چې په زړه کې به يې دغه خوځښتونه ترټولو ډېر وي اوکه نه نو الهام خوبه يې خامخا ور څخه اخيستی وي .

ددې لويې وچې په زړه کې دبارز نظامي اوسياسي جهت ( اسلامي امارت) دسياسي وجود دبرقراره ساتلو،دهيواد دخپلواکۍ دبېرته ترلاسه کولواوپه ټوله کې داسلامي مسؤليت دترسره کولو په موخه دڅرک مطبوعاتي مبارزه دهغې تودې معرکې يوه برخه ده چې د غربي ښکېلاک په وړاندې ډېره تونده روانه ده .

همداسې لکه په نورو پېړيو کې چې داسيازړه دهر اشغال اوتيري په وړاندې خپل فزيکي ضربان ښودلی او ناآرامه پاتې شوی نن هم له شوره ډک دی اودخپلواکۍ دمعرکې تود ډګر دی.

داچې نني استعمار خپله بڼه داسې اړولې چې داشغال دېبخودۍ زهر په شهدو اوګبينو کې ورکوي ، نو له لويه سره ډېرو ملتونو ته دازادۍ اوخپلواکۍ احساس ياخو بيخي شته نه او ياپې له هغه ايماني نوره سره فاصله راغلې چې په دغسې تورتمونو کې دبريادمسير لارپرې ليدلی شي، نو ډېرځله دبرحقه اوربښتينو مبارزينو داعيې ته هم دشک په سترګه ګوري، همدلته ده چې اسلامي تعهداتو ته دژمنو مطبوعاتو رسالت درنيبري او ددغسې اذهانو په تنوير کې بايد خپل مسؤليت ادا کړي .

دښمن خو تل دحق له نامه څخه دباطل په ګټه کار اخلي او تورو کرغېړنو اهدافو ته په سپينو اوپستو نومونو ځان رسوي، له يولوري په يوهيواد باندې نظامي تېری کوي، له توپونو اوټانکونو سره پرې راځي اوعملاً يې په نظامي ډول اشغالوي اوله بل لوري دهماغه هيواد خلکو ته دآزادۍ اوخپلواکۍ خبرې کوي ، دملي حاکميت، ملي بيرغ، ملي اردو، اوارضي تماميت په ټکو يې خطاباسي، په داسې حال کې چې هغوی يې هم دسر په سترګو ويني چې بچيان يې څوک په بمباريو وژني کورونه يې څوک ورويجاړوي او زندانونه يې له چاډک کړي .

داکيداى شي چې يوتعداد خلک داسلام ددغو دښمنانو په تبليغاتو غوليدلي وي اوحق ته باطل، باطل ته حق ووايي، چې ترډېره به يې په بې لارې کې ماديا تو رول لوبولی وي ، خوبل لورته دويښ احساس لرونکي بادرده خلک شته چې نه يواځې په دې تبليغاتو نه دي تېروتلي بلکې دخپل ايماني احساس دمسؤليت اودهيواد دخپلواکۍ لپاره يې نه ستړې کېدونکې مبارزه پيل کړې چې دادی انشاءالله دبري ترپوله يې رسولې .

په دې باندې مو کلک باور دی چې داسې يوه ورځ به خامخا راتلونکې وي چې دښمني اشغال په وړاندې د روان مقاومت اومبارزې تقدس او رښتينولي به لمانځل کيږي، خو دربغه چې دهغو اتلانو دميړانې قدر اوارزښت له ډېرو سره نشته چې په ډېرو سختو شرايطو اوضيقو حالاتو کې يې دښمن سرسامه کړی اودخپلو سرونو په نذرانه يې دښکېلاک پښې لړزولې.

دنړۍ اوسيمې په سطحه څومره ستړې دسيسې اوتوطيئې جوړې شوې ترڅو دغه اسلامي خوځښت له پښو وغورځوي او بدنام يې کړي او وکولای شي زمونږ په هيواد کې له هر راز خار اوتشويش پر ته خپل انډوخر ته دوام ورکړي، خو لله الحمد دډېرو لوړو قربانيو اوښه سياسي تدبر په نتيجه کې داټولې دسيسې خنثی شوې اودادی نن نړۍ او پخپله دښمن ددې جهت په بريا اودځان اومؤتلفينو په ماته ښکاره اعترافونه کوي.

ددې خوځښت اومقاومت نه يواځې دهيواد په سطحه بلکې دسيمې په سطحه قدر دانی په کار و چې دوخت زبرځواک ته يواځې دايمان اوعقيدې په طاقت تسليم نه شو او ددوی د بدمعاشۍ، ترهګرۍ، غرور، اوظلم په وړاندې کلک ودرېدل چې په دې توګه سره يې په نورو درعب او دبدبې موهوم اثر هم له منځه ولاړ، ددغه خوځښت او مقاومت بې سارې قربانۍ وې چې ددغو ښکېلاکګرو رازيې افشا کړ اونن دادی دشمالي اسياطاقتونه داوکراين په مسئله کې په زغرده ورسره ځواب وايي اوپه مقابل کې يې دريږي چې له دې مخکې يې دداسې جرئت تصور هم نه شو کولای، په همدې ډول دسيمې نور ځواکونه او طاقتونه هم اوس ددوی په وړاندې برندې ستر ګې راپستلې شي.

دغربي تاړاک په وړاندې داسلامي امارت دوسله وال مقاومت ترڅنګ دفرهنګي مبارزې هڅې هم همدومره مؤثرې وې تر دې چې دښمن يې هم په مؤثريت اعتراف وکړ، په دې ډګر کې له برېښنايي مطبوعاتو سره په څنګ کې چاپي مطبوعات له خپله اغېزه برخمن وواوبلا فاصلې وخت په وخت خپرېدل، دڅرک دفرهنګي سير اوږده واټن ته په کتواو داچې له هماغه لومړۍ ورځې ورسره په روانه مبارزه کې نږدې پاته شوی يم دنن اوپرون په اړه يې يوڅه په زړه کې لرم چې دکالګنې دمناسبت له مخې يې دليکلوله فرصت نه ګټه اخلو.

څرک دمطبوعاتو په افق کې په ۱۳۸۱ لمريز کال راڅرګنده شوه اوپه يوې داسې زمول شوې تکې توري فضا کې يې څرک وواهه چې په ټوله معنا سره په ټولو مطبوعاتو دوخت فرعونيت دخپل تسلط اوسانسور کمپله غوړولې وه، څرک وه چې په آزادۍ دمينو اوحقيقت طلبو لوستوالو، تنده يې ماتوله، حقايق يې خپرول، واقعيتونه يې بيانول، اوله هرقيد پر ته يې په خپلواک ډول ډېرې په ځای شننې اوتبصرې نشرولې، ځکه خو يې مينه وال زښت ډېر او هرڅوک وو.




دڅرک پرونۍ تګلاره اوروش ډېر دتائيدوړ و اوپه هماغه تګلاره يې دمطبوعاتو په ډګر کې لوړ مقام ترلاسه کړی و، پرون چې ټول مطبوعات سانسور و دڅرک آزادي دخلکو زړونه ځانته راړولي وو، څرک چې پرون په خلکو څه منلی شول اوڅومره ګټه پرې مرتب وه شايد اوس يې ونه لري.

دڅرک دنن په اړه به همدومره ووايو چې نن يې دپرون غوندې هيڅکله نه دی اوداحکم پرې زه دڅرک ديوه مينه وال په حيث کوم، شايد ددې نظر مخالفين هم وي، خو که دشاهد په ډول يې پرونۍ ګڼه راواخلواوله ننۍ سره يې مقايسه کړو، له دې پر ته چې ننۍ دابه په صحافت، ډيزاين او کاغذښکلې وي خودپرونۍ شايديواځې ديوه عنوان په لوستلو اسره داومنې چې رښتيا هم څرک چې پرون کوم څه کولای شول نن به يې ونه کړای شي اوله شک پر ته دڅرک ننی مؤثريت هيڅکله دپرونې په څېر اغېزمن نه دی.

# له څرک سره یوولس کلنه یارانه.

قاري حبیب



شوق او علاقه هم عجیب شی دی چې کله خو بیخې په سرې نخرې کوې د الله تعالی تقدیر دی چې زما په خټه کې یې له مطبوعاتو په تیره له مجلو ،ورځپاڼو او نورو چاپي نشریو سره شوق ایښی دی،دا شوق مې لومړی هغه مهال پیدا شو چې په ماشومتوب کې دماما په کور کې د یوه زاړه اخبار په کلکسیون واوښتم، دماما کره د یوې شپې په نیت تللی وم،خو د زړو اخبارونو مطالعې داسې مصروف کړم، چې په ناخبرۍ کې مې درې شپې وکړې.



د طالبانو د حکومت په مهال مې د ولایت په مرکز کې زده کړې کولې،مدرسې ته به کله ناکله شریعت اخبار راتلو ، اخبار به په اداره کې پروت و ،خو زما به ورته داسې تلوسه وه لکه د تږي چې اوبو ته وي،هسې په بهانه به مې کوښښ کاوو چې ادارې ته ورشم او اخبار راغلا کړم،الله تعالی مې دې نه ازمويي خو چې خپل ځان ته ګورم که څوک راته د پیسو بنډلونه هم پریږدي غلا به یې نه کړم، خو که چیرته کومه نایابه مجله یا اخبار په لاس راغی کیدای شي تر خپله وسه یې د ځان کولو هڅه وکړم.

د اخبار سره د هغه مهال مینې ته چې اوس سوچ کوم بیخي دلیونتوب تر حده وه،که په بازار کې به مې د اخبار ټوټه پیدا کړه نو دوړې به مې ځیني وڅنډلې او په جیب کې به مې کینښود ترڅو یې په مناسب فرصت ولولم ،زما د یوه هم صنفي پلار په بازار کې دوکان درلود ،چې هره اونۍ ورته اخبار راتلو ،له هماغه همصنفي سره مې یوازې دهمدې اخبار لپاره اشنایي توده کړې وه، چې له خپل دوکانه به یې اخبار راته راووړ، خیر له اخبار او مجلې سره د لیونۍ مینې کیسې دومره زیاتې دي چې که ټولې لیکم شاید دا مطلب ډیر اوږد شي دلته به یوازې له څرک مجلې سره د خپلې یارانې کیسه درسره شریکه کړم.

امریکایانو په افغانستان یرغل وکړ او دطالبانو حکومت یې ونړاوو،د امریکایانو له یرغل څو میاشتې وروسته د ولایت مرکز ته لاړم ، څه ګورم چې د بازار په څنډو کې د نی په نامه غرفې جوړې شوي او دلۍ دلۍ اخبارونه او مجلې په کې پرتې دي،د مجلو په لیدلو مې ځانګړې خوښي احساس کړه، د کلید ،ملالۍ،روز،هفته نامه کابل،صبا ، پرواز ،زنبیل غم او په ډیرو نورو نومونو اخبارونه او مجلې مې رانیول، خو چې مې وکتل له یوې مخې له اشغالګرانه تبلیغاتو ،عریانۍ او نورو اسلام ضد مطالبو ډک وو ، مجلې ښې ډیزاین شوي او اوډل شوي وي،خو منځپانګه یې داسې زهرجنه وه، چې چاته په ښودلو او حتی په کور کې په ساتلو یې شرمیدلم.

په دې مرحله کې که څه هم هرځای کتابخانې له اخبارونو او چاپي نشریو ډکې وې، تردې چې امریکایانو به د صلح او پخلاینې په نامه اخبار مفت تقسیمولو، خو په دې ټولو مطبوعاتو کې یوه نشریه هم داسې نه وه چې د کوم رښتیني مؤمن او متعهد فرهنګپال تنده یې خړوبه کړې وای.

زما په شان ددیني او ملي معیاري مطبوعاتو تږي مینه وال د اشغال راوړیو مطبوعاتو د دریاب په غاړه همداسې

تړي پاته وو، چې نه خو يې د حق شعار بدرګه کوونکې کومه مجله يا کتاب موندلی شو او نه يې له غرېږو او تصويري رسنيو دغه تنده خړوبولای شوای.

ربښتيا هم د اشغال د پيل کلونه سخته مرحله وه، نړيوال کفري ايتلاف په خورا غرور او ليونتوب کې و، هرڅه يو اړخيز و او د مخالف هيڅ غږ برداشت يې نه درلود، راډيوګانو، اخبارونو او نورو رسنيو ټولو د بوش او بلير مدحې خپرولې په اشغال راوړيو موسمي رسنيو سربيره زموږ د هيواد او سيمې زياتره هغه رسنۍ او ليکوالان چې ځانونه يې متعهد بلل او د اسلامپالنې او ژمنتيا ډېرې يې په سينه ټکولې هغوی هم قبلې بدلې کړې، د زور، زرو او تزوير په وړاندې يې د ژمنتيا پښې ولړزيدې تردې چې په پای کې د غرب د تبليغاتي يرغل په اتڼ ورګډ شول او ښه قلمونه يې په کې وڅرخول.

دا مهال نو د هر اخبار، مجلې، نشريې او هر ليکوال د ليکنې سرو کی همدا وو چې: نړيوال مرستندويان، سوله ساتي ځواکونه، طالب ترهګر، د طالبانو پاتي شوني، د طالبانو کرغېړن دور، جلالت مآب حامد خان کرزی او محترم جورج ډبليو بوش او داسې نور ويوکي چې د متعهدو او په وطن ستي فرهنګپالو په زړونو د غشو غوندې ننوتل.

په داسې تپه توره شپه کې چې تروږميو له څلورو خواوو هجوم راوړی وي، هرڅوک په شب کورۍ محکوم وي او د رڼا په وړاندې د تيارو استازو سرتاسري ايتلاف کړی وي، تاسو خپله پوهيږئ چې د رڼا د مينانو او د لمر څرک د ترږو تلوسه به تر کومه ليونۍ او اوج ته رسيدلې وي.

زه او زما په شان د معياري او حقاني ژورناليزم مينان د ۲۰۰۴ م کال په لومړيو کې په همداسې حالت کې ګير وو، له يوې خوا له مطبوعاتو سره ژوره علاقه وه له بلې خوا د يرغلګرو دروغجن او زهرجن مطبوعاتي هجوم و چې د مؤمنو فرهنګپالو په زخمونو يې مالګې دوړولې، د مطبوعاتي اختناق همدا د اوج شيبې وې چې يوه ورځ مې د مدرسې ديوه طالب په لاس کې په څرک مجلې سترګې ولګېدې.

هو کې، څرک د مطبوعاتي تورتم په اوج کې لومړنی څرک وهلی و، داسې څرک چې په لومړنيو شغلو يې د دروغجنو خفاشانو سترګې ړندولې، او د حق او حقيقت تږيو ته يې د سترګو ځلا وربښله، د يرغليز اختناق په همدې تورتم کې څرک زما په شمول د ډېرو سترګو ته ځلا ورکړه، ډېرو لوستونکو او د مطالعې مينوالو د څرک په رڼا لار وموندله، تردې چې د دښمن د ګمراه کوونکو تبليغاتو او تزويرونو له شر څخه په امن پاته شول، د اشغال او استعمار اهداف يې وپيژندل او په مقابل کې يې د مبارزې او جهاد ډګر ته ورانډې شول.

د مدرسې له طالب څخه مې څرک مجله د مطالعې لپاره واخيسته، نه پوهيږم لومړنۍ که دوهمه ګڼه وه، ځينې عنوانونه مې يې اوس هم ياد دي، يو عنوان يې داوه: خالصه بيا دې خدای زلمی کړه. دغسې نور په زړه پورې جهادي، علمي او دعوتي مطالب په کې و، مجله مې په داسې تلوسه لوسته لکه کومه ورکه مې چې موندلې وي، له هماغه وخته مې له څرک سره د مينې تار واچاوه، سره له دې چې د ترلاسه کولو کوم ټاکلی ادرس يې راته معلوم نه و، خو له مختلفو لارو او تپ و تلاش نه په استفاده مې هڅه کوله چې دغه ښايسته مياشتنۍ مجله ترلاسه او خپل ادبي تنده ورباندې ماته کړم.

يو وخت د ولايت په مرکز کې يوه کتابتون ته لاړم، کتابتون له حکومتي او يرغل راوړيو مجلو او نشريو ډک و، مجلې مې لټ په لټ اړولې خو خوند يې نه راکاوو، د کتاب خرڅوونکي راته فکر شو، لاندې باندې يې راته وکتل، له ډيرې، جامو او نورو مشخصاتو يې وپيژندلم چې طالب دی، پرته له دې چې څه ووايي د ميز لاندې يې لاس دننه کړ او د څرک مجلې تازه ګڼه يې راوايسته، مخې ته يې راته ونيوه او ويې ويل: واخله ملاصاحب!

ما چې مجله وليده سمدستي مې د قيمت پوښتنه ترې وکړې او مجله مې واخيسته، پوښتنه مې ترې وکړه چې آيا تاسو دا مجلې هميشه خرڅوئ، دوکاندار چې ډېر محتاط و، راته وويل موږ يې پټې خرڅوو، دلته راځي خو موږ يې

پټې ساتو، مراجعینو ته ګورو او داسې ښوک چې پوهېږو له داسې مجلې سره علاقه لري یوازې هغوی ته یې ښکاره کوو او اوس ددې مجلې همدغه ځانګړي خریداران پرې اموخته شوي او له موږ څخه یې وړي.

ځرک مې پرلپسې لوسته چې په ګټورو معلوماتو او فکري روښانتیا سربېره یې د لیکوالۍ او فرهنګپالۍ شوق هم راکې وپنځاوو، یو وخت مې دا ارمان و چې کاشکې مې کوم شعر یا لیکنه په دې مجله کې چاپ شوې وای، مجلې ته مې په یوه ادرس شعر ورواستاوو پرته له ځنډه په کې چاپ شو، له دې وروسته مې د ځرک له کارکوونکو سره د لیدلو او همکارۍ تلوسه وه، او بیا مې الله تعالی هغه ارمان هم پوره کړ، هغه ورځ مې تراوسه په یاد ده، چې د یوه ملګري د رالیکلي ادرس له مخې له ګڼې ګونې ډک ښار کې د ځرک په مخفي ادرس پسې ګرځېدم، څو ځایه مې بازاري ترانسپورت تبادله کړ، له ډکو سرکونه او تنګو کوڅو تیر شوم، د یوه پله په سر ودرېدم، څلورو خواوو ته مې وکتل، خو لوری رانه ورک و، زه چې د ویرې او شوق احساساتو اخیستی او په یوه مخفي هدف پسې لالهانده وم ځان راته د نسیم حجازي د ترورمی مسافر د داستان اتل ایسیدو، هغه چې د غرناطې په اشغال شوي ښار کې، د ډار او خطر له احساس سره له البسین مسجد څخه راوزي او د مجاهدینو په مخفي ادرس پسې کوڅې او لارې پل کوي.

بالاخره مې د ځرک پټ دفتر وموند، یوه تیاره کوټه چې تنګې کوڅې ته یې کړکۍ او دروازه وتلې وه، په کوټه کې یوه میز، یو کمپیوټر او ورسره دوه څوکۍ ایښې وې، په څوکیو دوه تنه ځوان فرهنګي مجاهدین ناست و، زه داسې مهال ورغلم چې یوه ورته لیکنه لوسته او دوهم تن یې په کمپوز بوخت و، همدا ورک او ګمنام فرهنګي مورچل د ځرک مطلع و، همدې مجاهدینو د مطبوعاتي تکتیم په اوج کې د جهاد او استقلال غږ پورته کړی و، همدوی او څو نورو ګوتشمیر ملګرو یې د یرغلګرو نړیوال رعب او دهشت مسخره کړی او په ډاګه یې د حق او حقانیت چیغه بدرګه کړې وه.

ځرک سره له دې چې په امتحاني حالاتو کې یې ځرک وهلی و او له بیلابیلو، موانعو، ستونزو او ابتلاوو سره یې ډغرې وهلې، تردې چې څو ځله له خطراتو سره مخامخ شوه خو دادی د یرغلګرو د تیښتې ترمهاله یې خپل متین ګامونه جاري وساتل او ساه یې ستړې نه شوه.

ځرک مجلې تر یوې لسیزې د اوږده او پیوسته سفر له امله زموږ د هیواد په تاریخ د یوې ثابتې او نه هېردونکې نشریې په حیث ځان ثبت کړ، دا مجله لکه څومره چې د محتوی د افادیت او اهمیت له اړخه کمساري ده، دامکاناتو نشتوالي او د ظروفو تنګوالي ته په پام سره یې استقامت او تداوم هم تر یوې ژورنالیستکي حماسې کم نه شي ګڼل کیدای.

ځرک په شاوخوا دوولس کلن بهیر کې په هیواد او اسلامي امت د راغلي تریخو سختو حالاتو عیني تصویر نه یوازې کتونکو ته وړاندې کړ، بلکې ددې زماني ژوندی انځور یې د راتلونکو نسلونو لپاره هم خوندي کړ، ځرک د اشغال شوي اولس د آزادۍ او حریت چیغې بدرګه کړه، ځرک د کلسټر او ډیزي کټر بمونو په درزهار کې خپ شویو ځګیرویو ته آزانګه ورکړه، ځرک د یوه سرلوړي خو یرغمل شوي اولس د جهاد او سرلوړۍ چیغه ورکېدو ته پرې نښوده بلکې په پوره جسارت یې د باطل په وړاندې د حق د زمزمې اکبر جهاد ترسره کړ.

ځرک نه یوازې د هیواد په سطحه د حق د احقاق او د باطل د ابطال دیني مسؤلیت ترسره کړ، بلکې د نړۍ په کچه یې په ورځنیو حادو مسائلو پسې پل واخیست، د غربي میډیا له دروغو او تحریف څخه یې پرده پورته کړ او د نړۍ په هر کونج کې یې مسلمان امت د وړپیښو ستونزو او کړاوونو په اړه رانه او ناویلي حقائق د لوستونکو مخې ته کیښودل.

هوکې، ځرک د اشغال په تیره لسیزه کې هغه جریده وه، چې د یرغلګرو له عالمګیرې میډیا سره یې ډغرې وهلې، په داسې حال چې د عصر مطرح قلموال او د ژورنالیزم مدعیان د ډالرو په ډنډ کې لاهو او قلمونه یې د کفر خدمت ته وقف کړي

وو، د څرک قلموالو يوازې د اسلام او حقانيت په تنګه ملا ترلې وه، سرونه يې په ورغوي ايښې و او د ژوند په بيه يې دژورناليزم په برخه کې خپل جهادي مکلفيت سرته رساوو.

زما باور دی، چې څرک مجله به زمونږ د جهاد او مبارزې د يوه ويارمن يادګار په حيث د هيواد په مطبوعاتي جوړښت کې ځان ته ثابت او تلپاتې ځای ثبت کړي، که په نږدې يا لرې راتلونکي کې مو په هيواد کې د سرتاسري اسلامي نظام د نفاذ ارمان ترسره کيږي ،بايد چې څرک مجله يې له رسمي نشراتي اورګانونو څخه وي، ځکه دې مجلې په سخت وخت کې د اسلام خدمت کړی، په سختو مرحلو کې يې د اولس روح او روان دلاسا کړی او په داسې حال کې يې د اولس د زړه حال ويلی، چې د دموکراتيک اختناق له امله د اولس په حق ګويه ژبه د سکوت مهرونه وهل شوي و، دې مجلې په داسې حال کې خپل ديني او وجداني مکلفيت ترسره کړی، چې د يو اړخيز يرغل او جبر له امله وجدانونه ليلام او قلمونه خرڅ شول، مجلې کرايه او ژورناليزم د حقائقو د تحريف او تکتيم آله وګرځېده.

په هر حال، خبره مې له څرک سره له ياراني او علاقې راپيل کړې وه، په څرک مې لومړی ځل د ۲۰۰۴م کال په لومړيو کې سترګې خوږې شوې وې او اوس دا دی ۲۰۱۵م کال رابريدونکی دی، نن چې د څرک د کليزې په مناسبت خپل تأثرات ليکم نو هماغه لومړنۍ شيبې مې سترګو ته لرې برې کيږي.

هغه مهال مې هيڅ تصور نه کاوو چې يو ولس کاله بعد به د څرک په کليزه ليکنه کوم، فکر مې کاوو چې څرک به هم زمونږ د مطبوعاتي جريان د ځوانيمرګو نشريو، عزم، توکل، استقامت او نورو غونډې د مطبوعاتي اختناق د جبر قرباني او د چلوونکو په شهادت او بندي کيدو سره به يې مطبوعاتي سفر نيمګړی شي.

خو لله الحمد دا دی څرک مو د غرب په خلاف د مطبوعاتي جهاد د لومړنيو نشريو له منځه د يوې يادګار مجلې په حيث راپاته ده، څرک د پخوا په نسبت د پامونږ پرمختګ کړی دی، څرک که پرون د محترم استاد محمد ياسر مرکه له سهار ورځپاڼې څخه په منني چاپوله نن د دې جوګه شوې چې له مطرحو شخصيتونو سره په خپله مرکې وکړي، په بيلابيلو موضوعاتو تحليلونه خپاره کړي، د علم، هنر، سياست، ساينس، تاريخ او ادب د مينه والو تندې ماتې کړي او د ورځې په نرخ برابر نشراتي مواد تر خپلو مينه والو ورسوي.

د څرک کليزه دې د دې وزينې مجلې مسؤل مدير، تخنيکي همکارانو، ليکوالانو، لوستونکو او ټولو مينه والو ته مبارکه وي، الله تعالی ته دعاء کوو چې د حق د غږ چيغه همداسې تانده او الهام ببښونکي وساتي، او د زمانې له شرورو يې په امن ولري. آمين يارب العلمين

**دخلکوعيبونه مه لټوئ**

**يو وخت يو باچا و په يوه سترګه ړوند اوپه پښه ګوډ و . يوه ورځ يې دهيواد تکړه انځورګران اورسامان ټول راوغوښتل او امر يې وکړ چې د ده يو انځور وکاږي په دې شرط چې دده عيبونه پکې ښکاره نه وي**

**ټولو انځورګرانو انکار وکړ او ويې ويل : ديوه ړانده اوګوډ انسان داسې انځور به څنګه کاږي چې روغه سترګه اوروغه پښه ولري ؟!!**

**ټولو انځورګرانو د باچا له انځور جوړولو نه انکار وکړ خو د دې ټوليز او عام انکار په منځ کې يو انځورګر رامنځته شو او سينه يې وډبوله چې داکار دی کوم ....!! په کار يې پيل وکړ او دباچا يوښايسته انځور يې تيار کړ او هغه داسې چې باچا دښکارپه حالت کې ګونډه ماته اودښکار د ټوپک څخې ته يې يوه سترګه پټه اوپه بله هدف کره کوي**

**په دې توګه باچا ښايسته انځور په داسې توګه تيارشو چې دواړه درانه عيبونه يې هم پکې پټ شول . کاش مونږ هم د دې انځور ګرپه څير دنورو خلکو د شخصيت مثبت انځورونه واخلواوپه منفي ټکو او سلبياتو يې سترګې پټې کړو . هيڅ داسې انسان نشته چې هغه تيروتني او منفي اړخونه ونلري خو که مونږ دځان اونورو ارامي او خوشالي غواړو بايد د هرچا ايجابي او مثبتو خصلتونو ته ځيرپاته شو اوپه منفي خويونو يې سترګې پټې کړو**

# دمعاصر صحافت



## رول ته کتنه:

## راتلونکي کې لښکرې نه؛ میډیا به د نړۍ دقومونو زړونه اوذهنونه فتحه کوي....

(همدرد)

دشک پرته نن ورځ پـه نـړۍ دمعاصرې میـډیا راج دی! بسته نظامونـه اورژیمونه ړنګوي ،ځواکمن هیوادونه اوشتمن ملکونه فتحه کوي ، دسپین نـه توراوتورنـه سـپین جـوړوي ...کـوم ولسـونه یـا هیوادونـه چـې دمعاصـرې پرمختللي میډیا څښتنان دي، هغوئ دنړۍ پاتې قومونـه اودولتونـه دځان پـه وړاندې مرعوب اومات کړي... هغوی د دریمې نړۍ په هېوادونو کې دخپلې خوښې نظانونـه تقویـه کـوي ...هلتـه خپلـو ملاتـړ و اولاسـپوڅوتـه روحیـه اوحوصـله ورکـوي ... هغـوی دمیډیااورسـنیود لارې ددریمـې نـړۍ زیـاتره هیوادونـه یرغمـال کـړي ... حکومتونـه اوچـاروکې یـې دغـرب لپـاره تـابع ګرځولي... په پوځې ډګر کې دځان پـه طرفـدارۍ او دخپلوځواکونـو د مـورال لوړولو لپاره بیدریغه پروپاګند اوتبلیغات کوي.

ډېر افسوس ! چې پـه دې میدان کې اسلامي نـړۍ بیرتـه پـاتې او د پیـاوړې اومجهزې میډیا له نعمت محرومه ده ،هم دغه وجه ده چې پـه اسلامي هیوادو کې امنیت ، سوله اوثبات نه راځي، کفري هیوادونه له یو سره تربل پـه ټولو کې بشپړه ارامې اوقرارې ده، هغوئ خپل ټول پام سائنسي علومـو کې پرمختګ تـه اړولی اوپـه اسلامي هیوادونو یې مرګونه اوجنګونه تپلي، دمسلمانانو شتمنۍ اووسائل اغیـارو قبضـه کـړي .هغوئ دخپلو ولسونو پـه ګټـه ورنـه کاراخلي،ټولـه اسلامي نـړۍ د مجرمانه غفلت په درانه خوب ویده ده، چې نه ورسره دنن فکر شته اونه دسبا...!



**میډیا له څه نه عبارت ده؟ او کومې برخې یا څانګې لري؟**

دمیډیا یو نوم صحافت دی، چې دا دعربي ژبې توری یا لفظ دی او له صحیفې اخستل شوی،صحیفه هغولیکلو موادو ته ویل کېږي، چې وخت پر وخت خپرېږي، لکه : ورځپاڼې، اوونېزې ،پنځلسېزې اومیاشتېزې مجلې اوجریدې، دا ټول په صحافت کې راځي.

په دې توګه صحافت دلیکلو موادو نه عبارت دی،خو نن سبا صحافت یوائې ترلیکل شویو موادو خاص نـدی ، بلکې دمیـډیا دواړو ډولونـو(چاپي اوبرېښنایي) ته صحافت ویل کېږي.

په چاپي میډیا کې ورځپاڼې ، مجلې ،جریدې اونور چاپېدونکي مواد راځي او برېښنایي میډیا د تلویزون،راډیو اوانټرنیټ له لارې خپرېدونکو موادو ته ویل کېږي

صحافت یا میډیا یوائې دخپـل "مافي الضمیر" ښکاره کولـو تـه نـه وایـي ،بلکې دخپلولوستونکو اوکتونکو اذهان دخپـل "مافي الضمیر"موافق جوړول غوره صحافت دی،که څه په پروګند هم دصحافت اومیډیا اطلاق کېږي ، خو ددې باوجود دپوهانو اتفاق په دې دی، چې دعامه پوهاوي لپاره ترټولو مؤثره زریعه صحافت دی .

د شک پرته میډیا داکار په اسانه کولی شي چې یوګوند یا یوسړی دعامه مقبولیت معراج ته رسوي او بل ګوند یا شخص دومره سپک و سپور کړي چې هغه تر "تحت الثری"نه هم ښکته وغورځوي.

د زمري نه میړی اولـه میږي نـه زمـری جـوړول دمیـډیا دچپ لاس کار دی ، همدا وجه ده چې نن سبا پـه هـره ټولنـه کې رسنۍ دومـره اغیـز او تـاثیر لـري چې خلکو په نا محسوس ډول خپل اذهان دمیډیا تابع ګرځولي یا پربل سپیناوي :نن سبا

نړۍ کې خلک دمیډیا په فکر ،فکر کوي،دمیډیا په ستر ګولیدل کوي ، دمیډیا په غوږونو اوریدل کوي او دمیډیا دتخمینونو په تله، تول کوي ...

له تاریخ څخه خبر لوستوال پوهیږي چې دصحافت ، میډیا او ژورنالیزم اصطلاحات وروسته جوړ شوي، خو استعمال یې پخوانی دی.

**په میډیا د اغیارو قبضه:**

دمیډیا په دې دواړو برخو (چاپي اوبریښنایي) کې دیهودو ونډه او قبضه زیاته ده، نن سبا زیاتره نړیوالې ورځپاڼې، مجلې او خبري چینلونه یا مستقیماً دیهودو دي، یا بالواسطه دیهودو په واک کې دي، همدا وجه ده چې یهود په فلسطین کې هرڅومره زیات وحشیانه جرایم ترسره کوي، وربانديې نړیواله میډیا چوپه خوله ده، داسرایل دوحشیانه کړو وړو ستاینه کوي او ترې ملاتړ کوي او یهود دې موقف ته نن نه؛ بلکې یوه پیړۍ وړاندې متوجه شول، په ۱۸۹۷ زکې دهیودو درې سوه مفکرانو په یوځای ناسته کې په نړۍ دیهودي راج راوستلو لپاره اوږده بحثونه وکړل، مختلف نظرونه یې وړاندې کړل، چې څنګه دا کار ممکن دی ؟ هغوی په پای کې لاندې پریکړې وکړې :

په لومړي ګام کې د نړۍ په تیلو ، سرو زرو ، او طبعي زخایرو دقبضې موندلو نظریه وړاندې کړه او د دې لپاره یې عملي کړنلاره هم وټاکله .

په دوهم قدم کې دمیډیا داهمیت منلو پریکړه یې وکړه، چې میډیا باید دځان کړو، ددې لپاره یې جلا عملي کړنلاره هم تصویب کړه .

دهغه وروسته نړیواله میډیا یهودو قبضه کړې او دیهودي ګټو دخوندیتابه لپاره دمیډیا نه د قوي دفاعي اواقدامي وسلې په حیث کار اخلي، دنورې نړۍ داذهانو جوړولو او فکرونو اړولو اوتغیرولولو لپاره تري ناوړه ګټه پورته کوي.

له یهودو وروسته نصارى په میډیا قابض دي، هغوئ هم دمیډیا پراخ میدان پخپل واک کې لري ،هغوئ چې په هرهیواد دیرغل نیت ولري، دهغه پرضد اول دومره ناروا تبلیغ اوپروپاګند کوي، څو نړۍ کې دهر سړي وربانديې درښتیاوو باور راشي ،دعامه اذهانو په جوړولو کې له میډیا څخه لوی کار اخلي.

اوسنی دور چې دمیډیا اوصحافت دور دی په خاصه توګه دیوولسم ستمبر وروسته دجنګ دټوپک ،توپ ،ټانګ اوطیارې نه تود جنګ دمیډیا په محاذ روان دی ، دحرب اوضرب په ځای دمیډیا اوصحافت ډګر ګرم دی ،اوس بری یا شکست چې څومره ترجنګي تجربو اوپوهې تړلی دی، دومره دمیډیا پروپاګند اوتبلیغ هم پکې رول لري ، هم دا میډیاده چې د ډېر بی زړه سړي نه زمری اوله زمري نه ګیدړ جوړوي ، له فاتح نه مفتوح اوله مفتوح فاتح جوړوي

داسمه ده چې اسلام د دروغجن صحافت یا پروپاګندته اجازه نه ورکوي ،لیکن دا هم روښانه ده چې اسلام دصحافت داهمیت انکار نه هم کوي ،اسلام نه یوازې دعامه ابلاغ اهمیت مني ،بلکې استعمال یې ضرور بولي ،دحق داحقاق اودباطل دابطال لپاره یې مؤثره وسله ګڼي.

نړۍ کې داغیارو دمقابلې لپاره داسلامي میډیا یا صحافت پرمختیا ته اړتیا ده، ښکاره ده لویدیځ د میډیا له لارې ښکاره لوړ انساني او اسلامي اخلاق،سیاسي اوکلتوري اقدار تر پښولاندې کوي،یوازې اسلامي نړۍ دکفري نړۍ ددغه یرغل مخنیوی په غښتلي میډیا کولی شي.

بل دفحشاوو او لوڅتوب لپاره نړۍ کې دمیډیانه کار اخستل کېږي، چې دې لړ کې یې تاثیر هم نهایتي مؤثردی ، په ځانګړي توګه دځوان نسل په بې لارې کولو کې یې نقش ډېر اهمیت لري ،مسلمانان دهغوئ مقابله پخپله غښتلي میډیا کولی شي څو د خپلو دیني او معنوي ارزښتونو ساتنه وکړي او خپل ځوانان دانحراف اوبې لارېتوب نه وژغوري .

سربیره په دې میډیا دمسلمانانو دتیر ایستلو لپاره دمسلمانانو منحرف شوي خلک دکارپوهانو او په نورو نومونو وړاندې راولي، دهغوئ الحادي نظرونه خوروي، دمسلـ انانو په لباس کې دهغوئ له خولو نه داسې افکار خپروي چې هغه داسلام یوډېر مسخ شوی شکل د نړۍ په وړاندې ږدي ،هغوئ په ښکاره داسلامي شریعت حکمونه دخپلو فرسوده اذهانو تابع بولي ، هغوئ ددې په ځای چې نړۍ کې دمظلومو مسلمانانو سره خواخوږي اوهمدردي ښکاره کړي سرچپه دظالم داعیه برحق بولي ، مظلوم مسلمانان ګرم اوپړ ګڼي ،ځکه هغوئ دپردیو معاش خواره دي ،له خپلو خولو یوازې هغه الفاظ اوتوري وباسي چې په هغوی باردران خوشالیږي.

**دصحافت یا میډیا ازادې**

یوه ستونزه چې له امه یې داسلامي دنیا واکمن اودیني حلقې اندیښنې لري ،داده غرب کې میډیاله حده وتلې ازادې لري، ربښتیا هم مطلقه ازادې ګڼ اخلاقي او ټولنیز مفاسد لري، دې لړ کې مسلمانان کولی شي ،د معتدل صحافت رامنځته کولو په لارو چارو غور وکړي، چې نه دا اوسنی مطلق جمودپاته وي، چې هیڅ نقد اونیوکه نه زغمل کېږي، هر هغه نقد چې دنظام

داصلاح اوتقویې لپاره وي ، دوخت دنظام دټینګښت او پیاوړتیا په نیت وي باید هر کلی یې و شي ، له نقادنه په ورین تندي منته وشي،هغه دي کار ته نور هم تشویق اوترغیب شي...اوکه داصلاح په نیت نه وي ترشایې دتخریب جذبه شتون ولري، بایدنقادته د سالم منطق په ژبه ځواب وویل شي.

په دې لړ کې داخبره عامه ده، چې دچارواکو اطاعت واجب دی او دهغوئ په هیڅ یو عمل تنقیدنشي کېدای! حال داچې داسلامي شریعت دلارښوونو له مخې د اسلامي هیوادوګړي حق لري، چې پخپلو چارواکونیو کې اونقد وکړي،په خاصه توګه هغه مهال چې کله دحاکم اوامیر یو حکم دقرآن اوسنت سره په تضاد اوټکر کې وي ، په هغه امیر تنقید کیدای شي آن تردې چې په ضد یې خلک محکمې ته عارض کیدای شي، ځو محکمه دهغه اسلام ضد حکم لغوه کړي... داسلامي لارښوونو له مخې واکمن "مافوق الفطرت" هستي ندی ، چې له هغه نه هیڅ خطاء نه راځي .... له دې وجې شریعت هغه په مشوری کولو مامور کړی دی ، اوپه شوری کې دهغه دراې خلاف رایه ورکول جوازلري ، او دااندیښنه بې ځایه ده چې هسې نه حاکم رانه خفه اوخوابدی شي ... په دې اړه درسول الله (ﷺ) نه څرګند روایتونه منقول دي... په هغو کې عاموخلکوته حکم شوی دی، چې دچارواکوسره په ناروا ووکې دملګرتیا کولو په ځای هغوئ سهي لارې ته راولئ!حضرت کعب بن عجره (رضي الله عنه) فرمايي:

خرج علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم ونحن تسعة،فقال:إنه ستكون بعدى أمراء من صدقهم بكذبهم وأعانهم على ظلمهم فليس مني ولست منه وليس بوارد على الحوض ومن لم يصدقهم بكذبهم ،ولم يعنهم على ظلمهم فهو مني وأنا منه ،وهووارد على الحوض(سنن النسائى كتاب البيعة ۴۲۱۲حديث)

مونږ ته رسول الله (ﷺ) راغی ،مونږ ټول نهه تنه وو،اووې فرمایل :له مانه وروسته به داسې امیران راځي، چا چې دهغوی ددروغو تصدیق وکړاو ور سره په ظلم کې یې مرسته وکړه هغه زماڅخه ندی اونه زه دهغه نه یم ، هغه ماته په حوض(کوثر)هم نشي راتلای ، او څوک چې دهغه ددروغو تصدیق ونکړي اوپه ظلم کې دهغه سره مرسته ونکړي هغه زماڅخه دی اوزه دهغه څخه یم ،هغه به ماته په حوض(کوثر) راځي.

دحضرت ابوسعید خدري (رضي الله عنه) روایت دی: إن من أعظم الجهاد كلمة عدل عند سلطان جائر(ترمذى كتاب الفتن ۲۱۷۴حديث)

**تر ټولو لوی جهاددا هم دی چې دظالم واکمن په وړاندې دانصاف خبره وکړای شي.**



**دتنقید اوتوهین توپیر :**

هو !دتنقید ترڅنګ شریعت په دې هم ټینګار کړی، چې نقد کوونکی به دتنقید اوتوهین ترمنځ توپیر کوي ، تنقید روادی بلکې په کولو یې ثواب دی ،خوتوهین نا روادی ،یوواریوسړي د ابن عامر په نوم یو چارواکی ولید، هغه ډیر نري کالي اغوستي و، هغه سړي چیغې کړې ،خلکوراشئ !زمونږ امیر دفاسقانو کالي په تن کړي !هلته مشهور صحابي حضرت ابوبکره (رضي الله عنه) هم حاضرو ، هغه وفرمایل چوپ شه، مادرسول الله(ﷺ) نه اوریدلي :

من أهان سلطان الله فى الأرض أهانه الله(ترمذى ابواب الفتن وقال :حديث غريب)

کوم سړی چې په ځمکه دالله(جل جلاله)دسلطان توهین وکړي الله به دهغه توهین وکړي. نومعومه شوه چې اسلام دتنقید او توهین ترمنځ توپیر لحاظول اړین بولي، تنقید ته روا او توهین ته ناروا وايي، نو اسلامي صحا فت یا میډیا کې تنقید ځای لري خو دتوهین لپاره جواز نشته .

**په غرب کې میډیا ازادې لري؟**

راګرزو دې یوښتنې ته چې غربي نړۍ چې څنګه دعوه لري،هلته هغسې رښتیا میډیا خپلواکه اوازادې لري ؟ حقیقت دادی چې دنړۍ په هیڅ یو هیواد کې هم مطبوعات مطلقه ازادې نلري، دمثال په ډول امریکا ځان نړۍ کې دجمهوریت دیمکراسۍ او دمیډیا دازادې لوی علمبرداربولي،په ټوله نړۍ کې دمطبوعاتو دازادۍ ډول غږوي، خوکه ځیرشو هلته میډیا محدوده ازادې لري! میډیا اجازه نلري چې دامریکا دملي ګټو پر ضد خپرونې وکړي، دامریکا دقوانینونه سرغړونه وکړي، یادامریکا دنظام په ضد بغاوتونه وپاروي اوپاڅونونه رهبري کړي، یا دامریکا د قضااومحاکموپرېکړې چلینج اوننګوي، دامریکا دپوځ اواستخباراتو محرم رازونه اواسناد افشاکړي،هم داوس امریکا یې ځواکونو زمونږ هیواد اشغال کړی، نړیواله میډیا حق نلري چې دافغانستان دوضعې په باب ریښتني معلومات خپاره کړي، دامریکایانودظلمونو اووحشتونوڅخه نړیوال خبر کړي ، داکار دامریکا دګټو پر ضد ګام تعبیریږي، هم داراز میډیا نشي کولی چې کوم داسې راپورياخبر خپور کړي، چې هغه دلته دمیشتو امریکايي ځواکونومورال کمزوری کوي ! لنډه داچې دمیډیا مطلقه ازادې یو بې معنی عنوان دی، واقعیت کې میډیا یرغمال شوې ، البته غربیان داسلامي نړۍ دمرعوبه کولو په موخه دمطبوعاتو دازادې پلمه دیوې وسیلې په حیث کاروي، خو اسلامي نړۍ ته پکاردی په منځلاریتوب غور وکړي دقوانینو په چوکاټ کې دمیډیا او صحافت دترقۍ او د محدودې ازادې لارې چارې وسنجوي



البته غربي ميډيا لوڅ عکسونه ، تشويقوونکي مناظر ښودل عارنه بولي، مسلمانانو ته بيا پکار ده، چې ددغسي ازادۍ دمخنيوي لپاره دسختو قوانينو جوړولو ترڅنګ له تخنيکي پلوه داسې مهارتونه ترلاسه کړي، چې په سبب يې دغير مشروع موادو دخپرولو مخه نيول اسان وي.

ولې داسلامي نړۍ محيط اوشرائط دمطبوعاتو په برخه کې هغومره ازادۍ زغملی شي ،څومره اجازه چې اسلام ورکوي، په اسلامي هېوادو کې حتمي ده، چې ميډيا بـه اسلامي ارزښتونو اومقدساتو تـه درنـاوی اواحتـرام لـري ؟ دسرغړونوپه صورت کې بـه استجوابولی شي ؟ پـه دي باب دهغو علماوونه طرحې ،نظرونـه اوسلاوي ګټورې دي کـوم چې پـه دي برخـه کې تخصص لري... دهغوئ دنظرونو په رڼا کې دميډيا اومطبوعاتو په قضيه غور ګټه لري

**بريښنايي انځوريزه ميډيا:**

تلويزون او انځوريزه ميډيا چې دتاثير او اهميت له پلوه، ضروري ده،بايد په اړه يې داسلام حکمونه اومقررات اودوخت ضرورت پـه پام کې نيولوسره يوه نتيجه ترلاسه شي تردې مهاله دانځوريزې ميډيا دجواز موضوع اختلافي ده، په اړه يې داسلامي نړۍ علماء پـه دوه برخـو ويشل شـوي، دعربي نـړۍ دعلماوو اکثريت يې په جواز فتوا ورکوي او دبرصغير ديوبندي علماووترمنځ دوه رايې شتون لري يوه ډله وايې :دتلويزون ډيردې نه کفري نړۍ داسلام پـه ضد ديوې لوې وسلې په حيث کاراخلي او تري داسلام پـه ضد تبليغات کوي او نړۍ کې دمسلمانانو کردارته زيان رسوي ، هغوئ دکفري نړۍ پـه مقابل کې ديوې متقابلي وسلې پـه توګه دتلويزواو انځوريزې ميډيانه پـه کاراخيستو کې شرعي قباحت نه ويني، لکه څنګه چې نن سبا په نړۍ کې داتومي وسلو ترلاسه کولو سيالې روانه ده، مسلمانان او نامسلمانان دواړه کوښښ کوي چې اتـومي وسلې لاسته وروړي، څو پرې خپله دفاع وکړي، حال داچې دجنګ پـه باره کې درسـول الله (ﷺ) نـه څـومره لارښـووني مـونږ تـه رسـيدلي،دهغو لـه مخې مسلمان ته دداسې وسلې استعمال روانـدی، چې دزمکې پـه مخ هرساه کښن اوزنده سر و وژني، حشرات اوحيوانات ووژني يا کوم لوی بشري نـاورين پېښن کړي ... ، خو داچې نن دغه وسله دمسلمانانو ددښمن په لاس کې ده، هغه وربانـدې مسلمانان ډاروي اوپـه راتلـونکې کـې انديښـنه شـته چې هغـه يې دمسلمانانو پرضد استعمال کړي،نوکه نن مونږ هرديني عالم اومفتي ته ورځو اوله هغه نه استفتاء غواړو، مفتي صاحب! په دې حالت کې چې دمسلمانانو دښمن اټومي ځواک دی، هره ثانيه او هره شيبه ددې خطر شته، چې هغه يې پـه مسلمانانو استـعمال کړي،ايا مسلمانان کـولی شـي دخپلـې دفاع اوبقـالپـاره اتـومي وسلې اوټيکنالوجي ترلاسه کړي....؟ مفتي صاحب به نه يوازې مونږته د ترلاسه کولوپـه اړه دجوازفتوا راکړي !بلکې راته وبه ليکي :چې داسلام اومسلمانانو دبقااودفاع لپاره اتومي وسلو ترلاسه کول فرض دي ... خامخا دي ترلاسه شي...

دعلماوو دغه ډله اصرارلري چې نن غرب تنها داسلام پـه خـاوره عسکري يرغل ندی راوړی بلکې عقيدوي اوفکري يرغل يې هم کړی ...اوبعينه هغسې حالت دی څنګه چې د خليفه مامون په زمانه کې چې کله يوناني فلسفه اوعلوم عربي ته وژباړل شول اوداسلام عقيدوي پولي يې ولړزولې... دوخت سلف علماءپورته شول بيرته يې په يوناني فلسفه بريد دفلسفې د کاله نه وکړ... اوپه دي توګه يې اسلامي عقايد ديوناني فلسفې ديرغل او ګواښ نـه خونـدي کړل...! نن هم اړتيا ده چې دلوېديځ دعلم الحيات (دژوندانه)په فلسفه بريـد بيرته دهغوئ پخپله وسله و شي...هغه وسله چې دوئ يې داسلام پـه ضد کاروي بيرته د دوئ په ضد وکارل شي...

ددينې علماوو ددې ډلې پـه اند :غرب داسي ستراتيژي ډيـزاين کـړي چې پـه راتلونکې کې به دهغوئ لښکري هيوادونه فتحه کوي نه؛ بلکې دهغوئ ميډيا بـه، د نړۍ دقومونو اوولسونوزړونه اوذهنونه فتحه کوي....بيابه هغه هيوادو نـه نيـول ور تـه اسان وي ... لـه دې وجې سرله اوس نـه دلويـديځ ددې پـراخ يرغـل پـه وړانـدې مسلمانانوته بيداريدل پکاردي او ورته جوابِ ترکي په ترکې ورکول ضرور دي.

او دعلماوو بله لويه ډله مطلقاتلويزون او انځوريزه ميډيا نـاروابولي، هغـوئ دلومړی ډلې علماوو دريځ پـه شد اومـد سره ردوي اووايې :دتلـويزون مفاسد اونقائص پـه نسبت سره مصالح تـه ډيردي،دمسلمانانو نسل بې لارې کـوي ، عکس منصوصي حرام دی ، تلويزون اوعکس سره لازم ملزوم دي، له دي وجې مسلمانانواوديني تحريکونوته تري اجتناب پکاردی.

لنډه داچې غوره داده چې دانځوريزې ميډيا پـه اړه دکوم حتمي اوقـاطع دريځ نيولوڅخه وړاندې، دنړۍ دهغو جيدو علماوو نظرونو ته مراجعـه وشي، څـوک چې په ديني اودنياوي دواړوعلومو کې تخصص اوپوهه لري، دهغوی دنظرونوپه رڼا کې ديومنځلاري دريځ جوړول پکاردي. ليکن پـه هرصورت اړتياده چې مسلمانان اواسـلامي هيوادونـه دميـډيا اومطبوعـاتو اورزښتمن رول اواغيـزمن کـردار درک اوو پيژني ... داسلامي مقرراتو په پام کې نيولو سره تـري دخپـل نجات اوپرمختګ لپاره کاروا خلي په باب يې غفلت اولاپرواهي ونکړي.

ځرک

# د آزادۍ او مقاومت ځرک

(قاري محمودغزنوي)

په کال۲۰۰۱ کې چې امريکا د څلويښتو نه د زياتو هيوادونو په ملتيا د افغانستان په حريم تيری وکړ، د لمويښتو ورځو د سخت مقاومت نه وروسته اسلامي امارت عقب نشيني ته مجبور شو، دا وخت امريکا او متحدين يې په سخت وحشت کې وو، له هر قسم وسلې خه يې کار اخست، له همدې امله هغه مهال تپه تياره ه، هر لوري ته د دښمن تبليغات او پروپاګند وو، ښمن هڅه کوله چې طالبان کمزوری او نيست او نابود ړي، له هر لوري څخه به يې د خپلو برياوو او د طالبانو پاتي راتلو آوازې او ګنګوسې خپرولې، راديوګانې د وی په واک، اخبارونه او مجلې د دوی په ګټه، يلويزون د دوی په نفعه خبرونه خپرول، له هر لوري مايوسي او تپه تياره وه، عام خلک خو څه کوي چې يرو شملورو ځوانانو هم سر نشوای پورته کولای، تر ې چې د امارت د چارواکو له مرستي او ځای ورکولو خه ډير داسي کسان هم په شټ شول، چې د طالبانو د اک په مهال به يې د هر راز مرستي وعدې او ډنډورې هلې، او په امارت کې د ډير زيات امتياز او عزت ښتنان وو، په همدې مهال له څه ځنډ څخه وروسته په ظامې ډګر کې طالبانو يو ځل بيا سر را پورته کړو، په ښمن يې مرګوني ګزارونه پيل کړل، د همدې ګزارونو د انځور او د حقائقو د ځرګندولو لپاره د امارت مطبوعاتي ډګر خپل فعاليت په ډير سخت، مشکل او ربړين حالاتو کې پيل او ګړندی کړو، د انټرنيټ څانګه يې فعاله، اخبار يې رامنځته کړو، مجلې يې خپرې کړې، ژوندۍ صحنې يې د آواز او فلم په بڼه خپرې کړې، د همدي مطبوعاتي او فرهنګي فعاليتونو په لړۍ کې يوه هم د ځرک مجله ده.

د ځرک مجله چې دا دی اوس يې عمر دوولس کلن شو، د خپل عمر په اوږدو کې ګڼې برياوې او کارنامې تر لاسه کړې دي، د ځرک مجله ريښتيا هم د نوم په څير په هغه سختو حالاتو او تپو تيارو کې د آزادۍ او مقاومت ځرک وو، د مجلې په ليدو له کتونکو سره نوی احساس پيدا شو، د جهاد له ګرمو سنګرونو خبر شوو، يرغلګرو ته د ور رسيدونکې زيان نه خبر شو، همداسې د ځرک مجلې په مټ مسلمانان د دښمنانو له توطيو او دسائسو څخه خبر شو، خپلو لوستونکو ته يې علمي، جهادي، ادبي، تاريخي، فقهي او ګڼ نور خدمات ترسره کړل، لکه څرنګه چې د غربي ښامار په مقابل کې نظامي مقاومت او جهاد د وخت ضرورت وو، او د کافرانو د شکست لامل وګرځيدو، په همدې بري او کاميابي کې د مطبوعاتو ونډه سم په نيمه وه، ځکه غربي ښامار خو

نړۍ ناقابل شکست ګڼل، ځکه خو یرغلګرو په خپلو ټولو مقاومتونو سترګې پټې ولې، خپله مرګ ژوبله او زیانونه یې پټه ول، خو د اطلاعاتو او کلتور ملګرو د مجلو، اخبار او نیټ په ذریعه دوی قابل شکست ثابت کړل، د جګړو ژوندۍ صحنې یې وړاندې کړې، او دنیا ته یې ثابته کړه، چې امریکا او ناټو یو لازواله قدرت نه دی، د هغوی عسکر په مرمۍ داسې سوري کیږي، الوتکې یې داسې را نسکوریږي، ټانګونه یې داسې پرخچې پرخچې کیږي او د اکمالاتو موټر یې داسې د اور په لمبو کې لولپه کیږي.

د یادونې وړ ده، چې په وروستي وخت کې داسې بریښي چې په څرک کې د ډیرو حوتصویرونو په نشرباندې پابندي لګول شوې، په داسې حال کې چې هغه تصویرونه د امریکایي عسکرو د مرګ ژوبلې او مسلسلو شکستونو دیوثبوت په توګه دنیا ته وړاندې کیدل او د څرک په جالبیت کې یې مهم رول درلود، که چیرې په شرعي ملحوض بند شوي وي، زما په فکر جنګي او جهادي حالت له ډیرو حالاتو مستثنی دی، او افغانان خو تر اوسه له جنګي حالت څخه نه دي وتلي، شرعاً دروغ سخت ناروا دي، خو په جهاد کې جائز دي، پیغمبر علیه السلام له دوکې سخته منعه فرمایلې ده، خو جنګ کې روا او حرب یې خدعه ګرځولی، تر دې چې الله تعالی پیغمبر علیه السلام ته په خوب کې د دښمن شمیر کم ښیي، ولې په حقیقت کې هغوی ډیر دي، ولو اراکهم کثیراً لفشلتم...

لنډه دا چې د له نورو مطبوعاتو سره سره د څرک مجلې په تیر وخت کې داسې خدمات ترسره کړي، چې باید تاریخ یې په زرینو پاڼو ولیکل شي، نو ځکه که د مجلې خدمات او د کار کونکو فعالیتونه او تکلیفونه وخیړل شي، غټ کتاب ترې جوړیدای شي، ولې دلته د مجلې د دوولسم کال د پوره کیدو ویاړ دا څو ټکې ولیکل شوو. الله دې دا مجله په آینده کې د غربي نړۍ د بشپړې ماتې او د اسلامي نظام د نفاذ زیری ورګرځوي. آمین.

### که د خولې له بدبویۍ کړیږئ؛ دا کربښې ولولئ

د خولې بد بوی ډیر لاملونه لري چې له هغوی څخه د ګردې ناروغي، هاضمې سیسټم خرابوالی، د وینې شکر زیاتوالی او ځیګر ناروغي د یادولو وړ دي. د خولې بد بوی د ځینو ناروغیو سربیره غاښونو ته پاملرنه نه کول، د خولې مختلفې ناروغۍ او د خولې وچوالي له امله هم رامنځ ته کیدی شي.
د خولې بد بوی له منځه وړلو لپاره د ورځې دوه ځلي باید غاښونه برس شي تر څو خوله کې پاتې غذایي مواد، باکتریا او له منځه تللي حجرې ووینځل شي؛ خو په یاد ولرئ د خولې بد بوي د غاښونو خرابوالي له امله هم پیښیږي چې باید ډاکټر ته مراجعه وشي.
دلته هغه کورنۍ لارې چارې دربښیو چې د خولې بد بوی له منځه وړلو کې به مو مرسته وکړي :
۱-چای وڅښئ: څیړنو ثابته کړې چې په شنه او تور چای کې د پولیفینول په نامه مواد موجود دي چې په خوله کې بد بوی زیاتوونکي باکتریا زیاتیدو مخه نیسي. پولیفینول په خوله کې د موجود باکتریا د هایدروجن سلفاید تولیدولو مخه نیسي.
۳ -خوله زینک لرونکی مایع په وسیله مینځل: زینک په خوله کې د سلفر مرکباتو مخه نیولو سره د خولې بد بوی له منځه وړي.
۳ -د خولې بوی ښه کولو لپاره ځینې بوټې استعمال کړئ: ځینې بوټې لکه نعنا، ګشنیز او ترخون د خولې بد بوی له منځه وړلو سربیره د خولې بوی ښه کوي. د خولې بوی ښه کولو لپاره یاد شوي بوټې باید یوې دقیقې لپاره وژول شي.
٤ -خوله خپل ترکیب کې الکول لرونکې مایعاتو په وسیله مه وینځئ ځکه چې د الکول هر ډول د خولې بد بوی لامل ګرځي.
۵ -ډیر مایعات وڅښئ: د اوبه او نورو مایعاتو زیات استعمال به مو خوله تازه او مرطوبه وساتي. د چینایي درملنو په اساس د خولې بد بوی د خیټې زیاتې تودوخې له امله هم کیدی شي چې دغه تودوخه د اوبو، مایعاتو او ځینو سبزیجاتو په مرسته له منځه تلی شي.
٦ -له ذهني فشاره ځان وژغورئ: په ډیرو خلکو کې د خولې بد بوی ذهني فشار له امله رامنځ ته کیږي. ذهني فشار به خوله کې د سلفر مرکبات تولیدولو سبب ګرځي چې له امله یې د خولې ښه بوی له منځه ځي.

# دغرب اوروسيي ترمنځ روانه ترینګلتیا!




(خبیراحمدم)

ځ په داسې حال کې چې دروسيي ولسمشر ( پوتين ) ددسامبرپه ١٨ نيټه په خپل کلني لسم مطبوعاتي کنفرانس کې چې ١٢ سوه ژورناليستان اوخبري نمايندګان ورته رابلل شوي وي ، په خپلو خبروکې دغرب له لوري دتازه لګيدلواقتصادي بنديزونوپه باب په صراحت وويل چې اروپايي اتحاديه اوامريکا چې څومره اقتصادي تحريمونه پرروسيي ولګوي ، نه به دوي له خپل موقف څخه تير کړي اونه به هم روسيي ته اوږدمهالي ستونزي جوړي کړي .

ک له بل لوري داروپايي ټولني په ورستی ناسته کې پريکړه وشوه چې ترهغو به په روسيي روان بنديزونه دوام پيداکړي چې داوکراين له کريمه جزيرې نه روسيي خپل فوځونه نه وي ويستلي .

ت که څه هم له روسيي سره دامريکااو اواروپا راولاړه شوې خطرناکه شخړه ، داوکراين په سرده ، خو دټولني نوي منشي ( دونالدتاسک ) خبره نوره هم تونده کړه ، چې نه ! اوس داوکراين دجزيرې په سر زمونږ اوروسيي ترمنځ کشمکش اوشخړه نده روانه ، بلکې خبره اوس خپله روسيي ته رسيدلې .

ځ داروپايي ټولنې دبنديزونو دورستی مصوبې له مخې ، لدې ورسته داروپاپه کچه يوشرکت اوموسسه هم اجازه نلري چې په کريمه جزيرې کې پانګونه وکړي اوياهلته خدماتي هڅي پرمخ بيوزي .

ځ دغه ډول مصوبې کې راغلي چې دټولني په چوکاټ کې موجود شرکتونه اوکمپنياني بائيد هغه اجناس چې ورل يې منع ګرځول شوي له رسولو څخه ډډه وکړي ، دغه راز داروپا بيړی اجازه نلري چې کريمه جزيرې ته داخلي شي اويا دبندرونوپه حدودو کې ايساري شي .

له بلې خوا ، اوباما هم په روسيي ديولړ تازه بنديزونوداجرا امر ورکړی ، هغه ويلي : سره لدې چې په روسيي به دامريکا اقتصادي تحريمونو ډيرموثر نه وي ، خو دوي صرف داخبره په اثبات رسول غواړي چې امريکاله خپلو نړيوالو ملګرو يعني اروپايي ټولنې سره اوږه پراوږه ولاړه اوله هرډول پريکړويې ملاتړ کوي.

دامريکاولسمشر ، په نظامي برخه کې خپل رول مهم وباله او زياته يې کړه چې امريکاچمتو ده ترڅوداوکراين دولت ته دکريمه جزيرې دازادولو لپاره بې پيلوټه الوتکي او دټانګونو ضد توغندي ورکړي .

دروسيي دبهرنيو چارو وزارت داروپا اوامريکا دورستيو پريکړو په غبرګون کې ويلي ، چې اوس هغه وخت رارسيدلي چې

د

اروپا په بروکسل په جدي ډول پوه کړل شي ، چې کريمه جزيره او دسواستوپول خليج ، دروسيي نه بېليدونکي برخي دي .

له بل اړخه دروسيي ولسمشر پوتين هم ورستيو بنديزونو ته په ځواب کې ويلي چې روسيه ، ديوې داسې پياوړي امپراطورى په سوچ او هڅو کې ده ، ترڅو نور هيوادونه له اقتصادي سقوط او کمزورى څخه وژغورى او نړۍ دامريکا اواروپا ديکه تازى له خپسکۍ نجات ورکړي ، دپوتين په وينا روسيه له امريکا سره په کال کې ۱۱ مليارده ډالر تجارتي راکړه ورکړه لري ، چې له بنديدوسره يې په روسيي هيڅ منفي اثر نه پريوځي ، همدارنګه اروپادبنديزونوپه وسيله يواځې ۲۰ فيصده دروسيي په اقتصاد بده اغيز غورځولى شي ، چې که روسيه وغواړي د۲ کلونو په اوږدو کې په خپلو متهو اويامتبادلو لارو څخه نوموړې تشه ډکولاى شي .

دسياسي څيړونکواودچارودماهرينو په وينا ، داروپايي ټولني اقتصادي تحريمونه شک نشته چې روسيي ته زيان اړونکي دي ، خوپه کوم شي چې روسيي ته ډاډ ورکوي ، هغه داروپايي ټولني دغړو هيوادونو ترمنځ دروسيي په مقابل کې نه هماهنګي ده ، په خاص ډول المان دټولني هغه پياوړى هيواد دي چې له روسيي سره اوس هم ژورې اوپخې اقتصادي اړيکي او راکړه ورکړه لري ،همدغه علت دى چې المان دروسيي په مقابل له ډيراحتياط څخه کار اخلي

دواشنګټن پوست دراپور له مخي الماني شرکتونوتيرکال په روسيه کې ۲۳ بيلونه ډالره پانګونه کړي ، راپور وايي ، تير کال دالمان اوروسيي ترمنځ دوه اړخيزه تجارت له ۱۰۴ بيلونه ډالروڅخه هم اوښتى و

په دې سربيره ، اروپا دطبعي ګازو، لويه اړتيا له اوکراين څخه اواوکراين يې له روسيي څخه ترلاسه کوي ، که چيرې اروپا خپلو بنديزونو ته دوام ورکړي ، روسيي کولاى شي دګازو په فشار اروپايي ټولنې او اوکراين ته سختې صدمي واړوي .

له بل لوري امريکا په داسې حال کې په روسيي دمستقيم اقتصادي ، فشار چانس او امکانات په لاس کې نلري ، داوکراين موضوع هم دامريکاپه سياست کې حساس ځاى او ديوې بنيادي موضوع په توګه حيثيت نلري ، په عين حال کې امريکا دسوريي په روانه شخړه کې دروسيي موثر رول ديته اړه کړه چې له منافعوسره يې محتاطانه ګام واخلي اوله نظر څخه يې ونه غورځوي .

نوويلاى شو ، چې دمګړى ، روسيه ، له کوم لوى اقتصادي بحران او فشار سره نده مخ ، ځکه څومره چې اروپا کولاى شي ، روسيه دتحريمونو له لاري زيانمنه او متاثره کړي ، باالمقابل روسيه هم داتوان په لاس کېويني چې داروپايوشمير مهم هيوادونه په اقتصادي کچه کمزوري اوبې وسه وګرځوي !!

## دژوند له پاره دا څوخبرې زده کړه

انسان بايد په دي پوه شي چې که خپله ژبه کنترول نکړي نو همداژبه به يې ملا ورماته کړې ،انسان بايد په دي پوه شي چې که دى په يوه خبرپخپله هرڅومره ډاډه اوقانع وي بيا هم نشي کولى ټولو خلکو ته قناعت ورکړې ،
انسان بايد په دي پوه شي چې ښه نوم اوغوره شهرت ترټولو شتمنيو غوره دى اوبايدوساتل شي ،انسان بايد په دي پوه شي چې په سمه لار د کيشپ په ډول تګ په خطالار دهوسۍ له تګ نه غوره دى
ماپتييلي ده چې يوه کارته درى ساعته مخته حاضريدل له يوي دقيقي تاخيرنه غوره ده ،
ماپتييلي ده چې دخلکو عيبونه پلټل بې ګټي بايد صلاحيتونه يې وپلټل او ګټه تري واخيستل شي ،

دهیواد جید عالم ، جهادي اوروحاني شخصیت

# محترم شیخ القران والحدیث مولانا عبدالرشید شینواری ، له څرک مجلې سره په ځانګړې مرکه وویل

مـــرکـه : کـــونکـــي ، خبیر م

## د الهي نصرت او کامیابي رمز دادې چې مجاهدین باید حق ته تابع او حق ورته له هرڅه نه مقدم وي

## بې ځایه مرګونه او دخلکو ځورول دولس او مجاهدینو ترمنځ فاصله ایجادوي

جناب ، شیخ صاحب ، ددې لپاره چې نوی ځوان نسل ستاسي له معرفت سره اشنا شي ، هیله کوو چې څومره لازم بولي، خپل دمعرفت ټکي ولوروي،چې دهیواد په کومه سیمه او په کومه نیټه مو دې فاني دنیاته سترګي رڼې کړي؟

**ځــواب** : بسم الله الرحمن الرحیم ، الحمد لله الذی هدانا لهذا وماکنا لنهتدی لولا ان هدانا الله ، اللّهمّ صلّ علی سَیِّدِنا محمد وعلی آل سَیِّدِنا محمد کما صلّیت علی سَیِّدِنا إبراهیم وعلی آل سَیِّدِنا إبراهیم ، وبارک علی سَیِّدِنا محمد وعلی آل سَیِّدِنا محمد کما بارکت علی سَیِّدِنا إبراهیم وعلی آل سَیِّدِنا إبراهیم انک حمیدمجید:

محترمه ، زه عبدالرشید، دشیخ اقاخیل ځوی اودجمعدار لمسی یم ، دافغانستان په شرقي اړخ ، دننګرهار دشینوارو ولسوالی په غرونو کې دعبدالخیل په دره ، دنرګسو په کلي کې زیږدلی یم ، دزیږدو دقیقه نیټه ماته نده معلومه ، خو موربه مې ویل چې ، دصفرالمظفر دمیاشتي ۱۲ شپه وه چې له هندڅخه داوسني پاکستان دمسلمانانو دراوتلو لړی پیل شوه ، په هغه کې ځما ماما ( شیرسیدباچا صاحب ) هم راووتلو، دمور په خبره مې چې ته په دغه وخت کې د۹ میاشتو وي ، نو زه چې حساب کوم ، زما دولادت او زیږیدلو سنه دپاکستان دتاسیس کال ( ۱۹۴۷ ) سره سمون خوري .

**پـوښتـنه** : عزتمند شیخ صاحب ! معمولا به مو ابتدایی زدکړي په خپل کلي کې دجومات له ملاصاحب څخه ترلاسه کړي وي ، که داراته ووایاست چې دپاتي اولوړو ددیني زدکړو او علومودترلاسه کولو په خاطر مو دهیواد کوموسیمو ته مزلونه کړي او په کومو جیدو استادانو چې زیات فیض او استفاده موترینه اخیستي وي اواوس هم ستاسي په سترګو کې ګرځي دیره شوي یاست ؟

**ځــواب**: زمونږ دوخت دمناسب تعلم سلسلي ، ډیرې ګرانې وي ، یو یو کتاب لپاره به دبیل بیل استاد خواته تلو، ما خپل عمده درسونه ، دننګرهار داچین ولسوالی ، مربوط چلګزي کلي کې دهغه وخت له نامتواوممتاز عالم چې دپیچ مولوي صاحب باندي مشهور وو ، یعني دکنړ دپیچ ددرې وو ، یوشمیر کتابونه تري وویل ، همدارنګه دننګرهار دبټي کوټ ولسوالی ، دکابل او کونړ دلوی سیندپه غاړه یوکلی دی دچاردهي په نوم ، هلته یوجیداواستادکل عالم وو، مرحوم مولوي صاحب رحیم الله ، چې اوس یې نسل الحمدلله ټول عالمان دي اومشرځوی یې مولوي نقیب احمدصاحب چې دخپل کلي

علمي مشري کوي ، له هغه مې هم کتابونه ولوستل.دغه راز مې دعلم دحصول لپاره ، دعمر زياته برخه دپاکستان په مختلفو ديني مدارسو کې تيره کړې ،

**پوښتنه:** جناب ، شيخ صاحب، دحديثو دوره اوپګړی مو چيرته اوله چا څخه تړلي ، او عمده تدريس موڅو کاله او چيرته سرته رسولی ؟

**ځواب:** داحاديثو لويه دوره مې دحضرت مولانا حمدالله جان ډاګی ، څخه د مردان په مظهرالعلوم مدرسه کې سرته رسولي اودفراغت پګړئ مو هلته تړلي ، دعمده او منظم تدريس سلسله مې پنځه کاله کيږي ، ددې ترڅنګ بايد واويم چې دالله پاک فضل وو چې کافيه مې لانه وه شروع کړې ، چې ابتدايي کتابونه دصرف ، نحوه ، فقه اونظم کتابونه مې کشرانو طالبانوته تدريسول ، اوالحمدلله ترنن پورې دتدريس لړئ جاري ده ، اودزړه ارزو مې داده چې په قبرکې مې هم داحاديثو درس کولای !

**پوښتنه:** محترم شيخ صاحب، سره لدې چې دهغه مهال مبارک استادان اومشايخ له هيڅ ډول امکاناتو او سهولتونو څخه برخوردار نه وو او حاکمانوهم پرې سخت شرايط او تنګه فضا حاکمه کړې وه، خو بيا يې هم دعلمي او روحاني خدمتونو سلسله زياته قوي ،په ولس کې محبوبيت پياوړی او پراخ وه ، دهغو علتونه ستاسې په نظر څه وو ؟

**ځواب** : زما په نظر دهغه وخت په استادانو کې لوی شی قناعت وو ، په جاه جلال پسې ډيرسرګردانه نه وو ، هغوئ ددين خدمت خپل يواځينی مسوليت ګڼلی وو ، دهغې زماني علماووپه دې فخرنه کاوه چې شاګردان يې زيات دی ، دمال اودحکومتي چوکيودحصول څخه نفرت درلود، دخلکو صلحي اوروغې به يې کولې ، خوله ملکی اوجرګه ماری څخه به يې ځان ساته اودالله تعالی په هغوئ لوی فضل او احسان وو .

**پوښتنه**: قدرمن ، شيخ صاحب ! دافغانستان دازادی اواستقلال په هرې مبارزی او مقابلې کې دعلمای کرامو ونډه او کليدي رول لکه لمر ښکاره دی ، خو چې کله خبره دسياسي واک اوامتياز راغلي اويا دتاريخ په پاڼو کې ديادولو ، بيا دعلمای کرامو اومشايخو برخه دنيشت برابرپاتي شوي او نور خلک دغازيانو او اتلانو په شکل کې ځلول شوي ، ستاسي په فکر ، ددغو ناانصافيو دلايل او ووجوهات څه دي ؟

**ځواب:** دخوږ نبي کريم صلی الله عليه وسلم مبارک حديث دی ، چې يوڅه وخت به خلافت وي ، علی منهاج النبوة، بيابه ورپسي بله مرحله شروع کيږي ، (ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا عَاضًا) يعني ملوک چيچونکي .

علمای کرامو په هغه وخت کې دسياسي مشرتابه څخه ډډه کوله ، اوبل له خيرالقرون څخه ورسته هروخت په واک کې دفساقواکثريت وي ، بل که هرڅومره داسلامي ملکونو مشران ځانونه مستقل حسابول ، خو مستقل نه وو ، نوهغو واکمنو نشو برداشت کولای چې علمای کرام دي اقتدار کې راشي اوکه به بيا کوم يوعالم هم قدرت ته ورسول شو ، نو هغه به درباري مزاجی وو ، چې دنورو علماوو دنفرت سبب به ګرځيده ، علماوو اومشايخو دافغانستان په استقلال او هرې مقدسې معرکې مهم او قيادي رول اداکړی ، نيت او مقصد يې دالله تعالی رضااو داسلامي مقدساتو ساتنه وه ، نور دوئ هم ډير په دې پسې نه ګرځيدل چې ددوئ نومونه اوشهرت دې راشي او يادې سياسي مکافات ترلاسه کړي .

**پوښتنه** : محترم شيخ صاحب ، تاسې دروسانو پرخلاف په مقدس جهاد کې لوړ ځای اومهمه برخه درلوده، دهغه جهاد قائدين ، رهبران او قومندانان مو پيژاندل ، څه وجوهات وو چې دهغه سپيڅلي جهاد يو زيات شمير جهادي سختې او قومندانان په فساد ، خود خواخی او خواهشاتو کې دومره ډوب او غرق شول چې په خپل منځي اخ ډوب او قتل عام او چور چپاول سربيره يې ان دامريکا او ۴۹ کفري هيوادونو يرغل هم تائيد او ياورسره ودريدل ، ستاسې په اند بهرنيو فشارونو او لاسوهنو داهرڅه په هغوی وکړل او منحرف يې وګرځول ، که نوري کمی وي ؟

**ځواب**: شک نشته چې پرديو لاسونو اولاسوهنو هروخت ، دافغانستان په تباهی کې خپل دخل لرلای اوس هم دغه دخل شته ، خو دهغه وخت خاصې نيمګړتياوې له حدنه زياتي وي اوس هم يوشميرنواقص شته ، ترټولو ړومبی نقص داوو چې په قران او سنت عمل پاتي وو ، دمثال په ډول ،

واعتصموبحبل الله ، شعار وو ، خو عمل پرې نه وو ، دالمومن اخوة ، المومن للمومن ، یشدبعضه بعضا، ویل په ژبو روان وو ، خو عمل یې خلاف وو ، هرچا خپل ځان مجتهد باله ، دحل اوحرمت فیصلې یې په خپل مزاج کولې ، هریوه ځان برحق اوبل باطل شمیره ، یوبل ته به یې حتی دکفرنسبتونه کول ، خپله رایه هریوه ته قران اوحدیث ښکاره کیده ، دجهاد مالونه یې خپل شخصي مال باله ، نه داچې دخیانت ګرو مخه یې نه نیوله ، بلکې ملګرتیابه یې ورسره کوله ، خپل ظلم ورته عدل ښکاره کیده ، اولویه خبره داوه چې دافغانستان دراتلونکې په فکر اوسوچ کې نه ول او ۴۹ ملکونه یې صرف دخپلې بقا لپاره راوستل . ړومبنې ، دورستنیو لپاره ، دپول حیثیت لري ، که دافغانستان اوجهاد دعوه داران ، داپورته بدخصلتونه الله مکره خپل کړي ، حال به یې له هغوپخوانیو هم بدترشي!

**پوښتنه:** ښاغلی شیخ صاحب ، امریکایانو له اکثرو سیمو څخه خپلې اډې اومرکزونه ټول کړل او په دې هڅه کې دي چې لویو ښو اډو ته پناه یوسي ، یعنې دطالبانو له حملو څخه ځان په ښنګ کړي او ملي اردو دځان سپر وګرځوي، طالبانو اومجاهدینو ته ستاسې خاصې توصیې اولارښووني څه دي ، چې په دغسې یوه حساسه مرحله کې باید له کوم ډول حکمت اوتدبیر څخه ګټه پورته کړي ، ترڅو دولس او طالبانو ترمنځ امریکایان واټن ونه غورځوي ؟

دسوال دابرخه چې دطالبانو له حملو څخه امریکایان ځان بچ کړي ، دادسوال کونکي خپل نظراوبرداشت دي ، امریکایان دغې سیمې ته دخپلې بقاپه نیت راغلي ، او اراده یې داده چې لدې ځای څخه په ټوله سیمه اواسیاخپل کنټرول اوسلطه راولي .

پاتې شوه ، داچې دولس اومجاهدینوترمنځ امریکافاصله وانه چوي ، زماپه فکر که مجاهدین بې ځایه مرګونه وکړي ، چوراوچپاول او اختطافونه سرته ورسوي ، دغه ډول ناروا کارونه خپله دولس او مجاهدینو ترمنځ کامله فاصله ایجادوي ، دآمر او مامور لپاره فرض ده چې عمل اوهره کړنه به یې دقران اوسنت سره برابره وي ، مجرم ته باید مجرم وویلې شي ، که هرڅومره دیوچا خصوصي ملګری وي، مکافات اومجازات ضروري دی ، په کوم نظام کې چې دغه اصل نه وي ، هغه ناکام او نیمګړی دی ، که مجاهدین رښتیاکامیابي اونصرت غواړي نو حق باید ورته له هرڅه څخه مقدم وي .

توصیی مې دادي ، چې مجاهدین باید دتقوا په ګاڼه ښکلي وي ، په سراوعلانیه کې ،دامیر اطاعت اوله خپلو لوایحوپیروي انتهایي ضروري ده ، په هرعمل اوحرکت کې اخلاص ،قوي عزم اواراده عدم استبداد اوپه خپل نظربیدلیله نه ټینګیدل دکامیابي یوه بهترین رمز دی ، دمشوري اخیستلو او مشورې منلو اصل باید موجود وي ، دمسولیت کماحقه اوپه صداقت انجام کول ، دتلاوت ، لمانځه اومسنونه اذکارو خاص اهتمام اوخپل صف له فساقو او منافقینوڅخه ستره کولو ته مسؤلین او مجاهدین ځانګړې توجه ولري

**پوښتنه:** محترم شیخ صاحب ، دجهادپه لار کې له حرامو اومشکوکو مالونو څخه اجتناب او په ناوړه طریقو دپیسو دترلاسه کولو اوبیایې په جهادي امورو کې مصرفول ، دشریعت له مخې څومره تاواني او دجهاد له اهدافو سره په ټکر او مخالفت کې دي ؟

**ځواب :** په دې زمانه کې دمشکوکو مالونو له استعمال څخه ځان ساتنه اوژغورنه دخاصو اولیاوو او ډیروصالحوبندګانوکاردی ، خوله قطعي حرامو څخه بایدخامخا سړی ځان وساتي ، دمسلم شریف یومبارک حدیث دی (الرجل یطیل السفر أشعث أغبر مطعمه حرام ، ومشربه حرام وغذی بالحرام یرفع یدیه إلی السماء ، یا رب یا رب أنی یستجاب له " ) یعنې یوکس به په اوږده سفرکې وي ، ګردغبار به پرې پروت وي ویښتان به یې هم جړپړ وي ، لاسونه به یې الله ته پورته کړي وي اوواېي چې یاربه باربه ، په داسې حال کې چې خوراک ، څښاک او لباس به یې حرام وي اویابه یې په حرامو پروریش کړی وي ، نو څنګه به دهغه دعا قبوله کړل شي ؟ ، یوبل حدیث کې راغلي ، چې د یوکس په غاړه دڅلویښتو روپو جامه وي اویوه روپی پکې حرامه وي ، لمونځ یې ورسره نه قبلیږي ،په مبارک حدیث کې راغلي ( إن الله طیب لا یقبل إلا طیباً، وإن الله تعالی أمر المؤمنین بما أمر به المرسلین) الله تعالی طیب اوپاک دی ، ناپاک اوغیرطیب، عمل نه قبلوي ، مومنانو ته الله تعالی په هغه څه امرکړی چې انبیاوو ته پرې کړی ، چې هغه پاک اوحلال خوراک اوصالح عمل دی

دغه ډول ، په ناحقه دچامال خوړل ظلم دی اوظالمانوباندې الله تعالی لعنت ویلی ،

ملعون سره الله پاک نصرت نکوي ، نو په جهادکې څه داسلام په هر رکن اوبرخه کې دحرامو استعمال لوی هلاکت دی ، اوپه دې برخه کې مباشر اوهغه څوک چې واک دمنع لري او نه يې منع کوي دواړه شريک دي

دبنی اسرائيلو ديو بزرګ قصه الله تعالی په قران کريم کې ذکر کړې (لعن الذين کفرو من بنی اسرائيل علی لسان داود وعيسی بن مريم ذالک بما عصو وکانوا يعتدون کانو لايتناهون عن منکرفعلوه (مائده , ۷۸ و ۷۹) خلاصه دغهانود نهی عن المنکردنه کولو له امله ټول ملعون شول اودنفرت مستحق وګرځيدل :

اصل خبره داده چې حرام هيڅ يومسلمان استعمالول نه غواړي ، خو شيطان هغه حرام حلال اومزين ښکاره کړي ،

حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ته يوډله ځوانان راغلل چې مونږ ځو جهاد ته ،مرکب راکړه ، د هغه مبارک سره په لاس کې څه نه وو ،چې ورېې کړي ، نوهغه ډله سخت خفه وګرځيدل، الله پاک دتوبی په سورت کې وايي ( وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ) يعني په هغو خلکوجناج اوسختي نشته چې راشي اوته ورته ووايي چې هغه څه ماسره نشته چې تاسې جهادته پرې ولاړشی !

نوحضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم چاته ونه ويل چې ورشی ، اختطاف وکړی ، دجهاد ي ضرورت په نامه له چا څخه په زوره مال ترلاسه کړی . بل له حرام خور سره دالله تعالی نصرت نه وي اودرحمت پرښتې ترينه ليرې ګرځي .

الله تعالی ، ترهغو چاته ښښنه نکوي چې پردی حق څوک خپل مالک تسليم نکړي

**پوښتنه** : محترم شيخ صاحب دپای پوښتني په ډول که دفرهنګي مبارزي په اهميت او ضرورت څه لنډ تشريحات ولوروي ؟

ځواب : داسلام سپيڅلی دين ټول رڼادی ، ستاسې په اصطلاح فرهنګ دی ، اسلامي فرهنګ دجهاد باالقلم نوم دی ،فرهنګ ، دهر ې جامعې ژبه ، ښکلا، اوډټولنې داسرارو معبردی ، خلک مختلف طبقات دی ، زمونږ دجنګ اوغم ځپلي هيواد نه علاوه ، اکثره دنياوال دسواد اوليک لوست څخه برخمن دی ، دهغودعوت اوتنوير اوحق جهاد ته قانع کيدل په فرهنګ باندې کيدای شي ، په طالبانو همدغه ګوت نيونه کيږي ، چې دوئ فرهنګي کمياني لري اوخپله پاليسي او لاسته راوړني دخلکو اذهانوته لکه څنګه چې لازمه ده ندي رسولي ، مامخکې درته خلاصه کړه چې اسلام ، اخلاق دي ، اسلام سپيڅلي عقيده اوايمان دی او اسلام حق ته بلنه ده ، په اسلام کې دهرچا حقوق محفوظ دي ، دغه واقعيتونه به نړيوالو ته داسلامي فرهنګ له لارې روښانه کيږي ، صم ، بکم ، دمړوصفت ګرځولی شوی ، داخبره ديادولو وړ ده چې دهرفن لپاره خپل ماهرين پکاردی ، داسې نه چې هرناخبره به دغه مهم کار پرمخ بيايي ، په هرصورت ، فرهنګي مبارزه ، دنن اهم ضرورت اواړتيا ده، بايد نوره هم ورته زياته توجه وشي او روان کار کافی ونه بلل شي ،

معذرت غواړم ، زه دبلې زماني کس يم ، له مانه ډيرې پوښتنې ندي پکار، ځوانان علمای کرام شکر دی زيات دي ، هغوی سره خپل مزي کلک کړی

ځانګړی سفارش : په خپلو نشرياتوکې لازماً، دسيرت نبوي ( علی صاحبهماالف الف صلوة ) لپاره خاص ځای ورکوی ، اويوه صفحه اوبرخه ورته ځانګړې کوی، والسلام عليکم ورحمة الله وبرکاته .

په روايت کې راغلي چې سفيان الثوري رحمه الله به کله له درسه ووت له جيبه به يې يوه وړه پاڼه راوايستله هغې ته به يې وکتل او بيرته به يې په جيب کې کېښودله. شاګردانو به يې په خپلو کې له يوه بل پوښتنې کولې چې په دې پاڼه کې به څه ليکلي وي؟ يوه ورځ چې هغه له درسه ووت يو شاګرد يې له شا پټ ورپسې ووت هغه پاڼه را وايستله او په هغه کې ليکلي و: يا سفيان ! تذکر وقوفک بين يدی الله: ( يعني ای سفيان ! دالله په مخکې دريدل در ياد کړه.

# ثرک (۱۲) ساله شد.

(ذبیح الله مجاهد)

ماهنامه ثرک که بدست بنیان گذاران فرهنگی امارت اسلامی افغانستان، بعد از تجاوز امریکایها بنا نهاده شد، با پشت سر گذاشتن فراز ونشیب های زیادی اکنون دوازده سال خود را تکمیل نمود.

ماهنامه ثرک که خطرات زیادی را در راستای، ترتیب، چاپ، کار وتوزیع به، و قلم مردان خود پشت سر گذاشته، در حالی قدعلم میکند که امریکایها را از کشور به فرار مجبور نموده و سنگر فرهنگی امارت اسلامی را به مراتب وسیع تر و فراگیر ساخته است.

به یاد دارم که آغاز فعالیت این ماهنامه، مرادف به قبولاندن زجرهای وحشی زندان گوانتانامو محسوب می شد.

زمانی که ثرک به چاپ خود آغاز کرد، صدای ملت زجر دیده افغان، خفه شده بود، یورشگران امریکایی توانسته بودند که همه صدا های حماسه ها را در عرصه فرهنگی، علیه اشغال خود خاموش نمایند.

قبل از چاپ ماهنامه ثرک یک ماهنامه دیگری بنام (مجله عزم) آغاز به کار نمود، ولی دشمن توانست که آن صدا را بعد از زمان اندک خاموش نموده و اندر کاران مبارز میدان فرهنگی ملت مظلوم افغان را روانه زندان کند.

تنها مجلهء که توانست خود را زنده نگهدارد، والهام بخش به سایر فعالیت های رسانی در صفوف جهادی باشد، همین ماهنامه ثرک بود.

دست اندر کاران آغازین این ماهنامه در ابتداء فقط ٦ تن بودند، که الحمدلله همه به، به سر می برند و بدون اینکه احساس خستگی نمایند، اکنون هم مصروف فعالیت های جهادی در راستای فرهنگی و تنویری هستند.

مدیر مسئول ماهنامه، مسئول تخنیکی و نویسندهای ماهنامه همه از جمله طالبان مدرسه و یا عالمان دین بودند، ولی در یکی از مجالس اشخاص سیاسی و

نسبتا آگاهان امور، نشسته بودم، یادهانی از ماهنامه ثرک صورت گرفت، گوشهایم را بیدار نمودم، تا در مورد مجله مذکور که خودم نیز یک تن از کارمند اداره آن بودم، چیزي بشنوم، گفته های مختلف را استماع نمودم، و فیصله همه مجلس به این بود که این مجله از طرف کارمندان بیسار ورزیده حزب اسلامی افغانستان به چاپ میرسد، مضامین آن همه از طرف کسانی ترتیب وتهیه میگردد که اکنون در فرانسه یا دیگر کشورهای غربی، به سر می برند و با دست رسی به معلومات بسیار قوی، مجله را یاری میکنند!!

زمان آنقدر خطرناک بود که من از هراس نه توانستم، حقایق را برملا سازم و بگویم که خودم جمع ۵ تن دیگر از علماء

دینی کشور، همه کارمندان و نویسندهای مجله ځرک هستیم.

گذاشتم تا ذهنیت عامه از واقعیت های چاپ، ترتیب و دیزاین مجله به فاصله زیادی دور تر باشد.

زیرا تقویت همین نظریه، در آن زمان برای پرسونل اداره ماهنامه (ځرک) از لحاظ امنیتی بسیار مفید تمام می شد.



خوب یادم است که به دفتر کار اداره ځرک سفر ما توسط حیوانات صورت میگرفت، و یک اندازه پیاده روی هم داشتیم.

روزهای کار ما، در یک هفته فقط دو روز بود، در ضمن اغاز کار ماهنامه ځرک یک روزمانه را به نام ضمیر هم زیر چاپ گرفتیم که بعد از مدت زمان کار چاپ آن به تعویق افتاد، زیرا روزنامه بود، هر روز نیازمندی رفت و آمد به چاپ خانه داشت و وضعیت امنیتی ایجاب نه میکرد.

ماهنامه ځرک یگانه ماهنامه زمان خود بود که مسائل جهادی را در کشور بازتاب میداد، اشغال را محکوم میکرد، پرده را از مظالم و وحشت های امریکایها برمیداشت و اذهان عامه را در برابر اشغال کشور تنویر می ساخت.

بعدها همین اداره توانست که کارهای فرهنگی را توسع بخشد، مجلات دیگر نیز آغاز به کار نمود که اکنون الحمدلله شمار آن به اندازه زیادی بالغ گردیده است.

کمیسیون فرهنگی امارت اسلامی افغانستان هم توجه زیادی را به اداره مذکور معطوف نمود و تا اکنون الحمدلله فعالیت ماهنامه به حدی رسید که ما اکنون شاهد چاپ شماره (۸۵) و اکمال (۱۲) سال آن هستیم.

مقاله رسمی، مضامین، عناوین، گذارشات، مصاحبه ها، اشعار، معلومات دینی و در کل ابعاد مختلف سیاسی و اجتماعی را زیر بحث میگیرد و ماهوار آنرا به خواننده ها تقدیم می نماید.

اکنون الحمدلله نویسندها، همکاران و در کل اداره ځرک بسیار شگوفا شده، و به مراتب از قبل توسعه یافته است.

ځرک توانسته توأم به سنگرداران جهاد، همگام باشد، دست آوردهای سیاسی و نظامی امارت اسلامی را در عرصه فرهنگی ورسانه یی باز تاب دهد.

سیر (۱۲) ساله ځرک یک موفقیت بسیار عالی برای، مسئول اداره، دست اندرکاران، همکاران تخنیکی، توظیف شده های توزیع، کمیسیون فرهنگی و در کل به تمام صف جهادی کشور بوده و ما به همهء اینها می بالیم و برای همه اوشان خواهان موفقیت مزید هستیم. والسلام

# د شیخ الشهدآء

## مولانا عبدالله الذاکري صاحب رحمه الله ژوند او کارنامو ته کتنه

عبدالرؤف حکمت



پیړۍ وشوې چې اسلامي امت له سترو مصائبو او ازموینښتونو سره مخامخ دی، په ځانګړې توګه دارو پایانو له صنعتي او ساینسي پیشرفت وروسته درسته اسلامي نړۍ د کفري یرغلګرو خصوصاً اروپایي اشغالګرو د پوځي، سیاسي، فکري او اقتصادي استعمار او استثمار په لومو کې ښکېله ده.

خو د اسلامي نړۍ ددې بدې ورځې او مسلمانانو دمحکومیت په وړاندې ټول امت هم خاموشه نه دی، بلکې د امت په منځ کې شته داسې علماء، مفکرین، مجاهدین ،لیکوالان او نور بادرکه خلک چې دامت بدې ورځې یې خوبونه تنبتولي او خپل ژوند یې د مسلمانانو ویښولو او دکفر په وړاندې مبارزې ته وقف کړی دی.

که دافغانستان په سطحه وایو، ددې هیواد د معاصرې کفرځپونکې مبارزې په لړ کې یو ویاړمن، نه ماتیدونکی او لاربنود مبارز شیخ مولانا عبدالله ذاکري رحمه الله و، چې دکمونیستي تاړاک له وخته نیولې بیا په افغانستان دامریکایانو د یرغل او شکست تر مهاله یې په ټولو دورو کې د یوه ویښونکي او بادرکه لاربنود په حیث خپله وظیفه سرته رسولې، مسلمانان یې دکفر په اغراضو او فریبونه آګاه کړي، او د حقې لارې رهنمایي ورته کړې ده.

د شیخ عبدالله ذاکري صاحب همدا جهادي او دعوتي موقف و چې د کفر پلان جوړونکي او ستراتیژیستان یې نارامه کړي او له اندېښنو سره مخ کړي وو، نوځکه یې په پای کې په یوه شیطاني قاتلانه هڅه کې د اسلامي امت دغه ویاړمن رهبر په نښه کړ او په شهادت یې ورساوو.

د جناب شهید ذاکري صاحب د شهادت د لومړني تلین په مناسبت غواړو د نوموړي دژوند اوکارنامو په اړه لنډ معلومات درسره شریک کړو هیله ده چې تنده مو پرې ماته شي

### پیدایښت او دا ژوند لومړني مراحل

شیخ الشهداء عبدالله ذاکري صاحب په **۱۳۵۳** هـ ق کال کې چې له **۱۳۱۳** هـ ش او **۱۹۳۴** میلادي کال سره سمون خوري دافغانستان د کندهار ولایت مرکز کندهار ښار ته څېرمه د ذاکرشریف په کلي کې دنیا ته سترګې وغړولې، د پلار نوم یې شیخ میا نظام الدین صاحب او د نیکه نوم یې شیخ میا خیرالدین صاحب و.

د ذاکري صاحب کورنۍ له څو پیړیو راهیسې په همدې سیمې کې دعلم او سلوک یو نوموتې کورنۍ وه، د دوی نیکونه تر څو پیړیو علماء، مشائخ او صوفیه کرام تیر شوي وو، جناب ذاکري صاحب چې له ماشوموالي یې په څیره کې دکمال او نبوغ نښې څرګندې وې، له څلورکلنۍ څخه یې دخپل والدصاحب تر سیوري لاندې د علم زده کړه پیل

# ګلخونه

## سپین مشال

لمعان

بیا مرګونو ورته لویه جرګه کړې
دغربي شیطان پوځونو ته ملګرو

تندریز پرې ګذارونه له هر لوري
اوس یې نه پریږدي خوبونو ته ملګرو

ډلیز قبرونه جوړ شول په ځوځله
دلته ګورئ یرغلونو ته ملګرو

سره تبۍ شوه سور کافر به پکي سوځي
اریانا وتور تمونو ته ملګرو

غلامي یې په خپل دود دستور کې نشته
سپین مشال دی تاریخونو ته ملګرو

دلمعان اصلي ټاټوبی کابل جان دی
کړي سلام یې هسکوغرونو ته ملګرو

## توفیق

عرفان الله عرفانی

لوی څښتنه دجهاد راکړې توفیق
له تاغواړمه هدایت الطریق
دومره توان طاقت مې مټوکې پیداکړه
چې قانون دې په دنیاکې کړم تطبیق
صفانیت پوره اخلاص راکې پیدکړه
چې اسلام ته ملتونه کړم تشویق
په قران اوپه حدیثو عمل راکړه
قوي ذهن سوچ او فکرښه عمیق
په اغزنه اوږده لاره مې مزل دی
یوسپېځلی مجاهد مې کړه رفیق
ټول جهان مې مخاطب اوماخطیب کړه
چې اسلام کې ورته وکړم ښه تحقیق
چې دکفر ټغرټول کړي له نړۍ نه
داکډ وډلښکر موکړه راته تنسیق
دنړۍ ستړې بلا سره دې جنګ دی
عرفاني اوسه هرپلان ته ښه دقیق

## رباعي

آن لعل سخن که جان دهد مرجان را
بی رنگ چه رنگ بخشد او مرجان را

مایه بخشد مشعله ایمان را
بسیار بگفتیم و نگفتیم آن را

## سينې وږو

مهاجر

په دردوپسي سنګر ته سينې وږو
دغمونو ومحشر ته سينې وږو

دنګې ونې چناري لرو جهانه
ځکه نن دتورو غر ته سينې وږو

دهر ګام پرسر ازمون دی لاره باسو
داغزيو وبستر ته سينې وږو

نا قرار درب په عشق يو پاريدلي
دزخمونو سمندر ته سينې وږو

دامو کړی دی تکل يو څو زلميو
په جانان پسي خطر ته سينې وږو

تږي زړونه لا لهانده پسي ورک يو
داورونو سخت منظر ته سينې وږو

مهاجر يو لارويان دپاکې مينې
عشقه ستا وپاک ګودر ته سينې وږو

### مولانا

ای بس که نباشیم و جهان خواهد بود
نی زنام و نه نشان خواهد بود

زین پیش نبودیم و نبود هیچ خلل
زین پس چو نباشیم همان خواهد بود

## غزل

**پامير صاحبزاده**

مرګيه لږ څه انتظار پاتې ده
شبګير وهلي ته سهار پاتې ده

د قافلې رهبر بيداره ناست دی
بس د دې يوه غره په سر لار پاتې ده

يم رسېدلی د لاهوت مکان ته
په ازاد زړه کې مې يو ډار پاتې ده

د ازادۍ په ذکر فکر کې يم
مطرب ته اوس يمه ستار پاتې ده

دنګه ښکلا به په ګودر جوړيږي
ټوله خبره تر چنار پاتې ده

دا خزانه زه هم مونډلی شمه
خو په وطن کې مې ښامار پاتې ده

زه د پامير تعويذ تر متې تړم
په دې خوني ښامار ګوزار پاتې ده

### مولانا

شمشیر ازل بدست مردان خداست
گوی ابدی در خم چوگان خداست

آن تن که چو کوه طور روشن آید
نور خود از او طلب که او کان خداست

کړه، په خپله سیمه کې له څه موده زده کړې وروسته یې د علم په حصول پسې سفر پیل کړ، دکندهار او شاوخوا سیمو په مختلفو مدارسو سربیره یې په غزني ولایت کې هم زده کړې وکړې، دغه راز یې د پاکستان دبلوچستان په ایالت کې هم د علم د طلب سلسله تعقیب کړه، په ۱۳۳۴هـ ش کال کې نوموړی د ۲۱ کلنۍ په عمر له دیني علومو فارغ او په کندهار کې یې د فضیلت دستار د وخت دجیدو علماء کرامو او مشائخو په لاس پرسر کړ.

## د تعلیم، تزکیې او تبلیغ ژوند

د شیخ ذاکري صاحب کورنۍ لکه څنګه چې دعلم کورنۍ وه دغه راز یې د تصوف او تزکیې په برخه کې هم خدمات سرته رسول ددوی خاندان د تصوف د نقشبندیه مجددیه بانوریه طریقې له لارې دعامه اصلاح او تزکیې چاره پرمخ وړله، جناب ذاکري صاحب په تانده ځوانۍ کې لا دهمدې طریقې دیوه سالک په حیث په طریقت کې داخل شوی و تردې چې د علم د سفر له خاتمې سره یوځای یې د طریقت لړۍ هم پای ته ورسوله او په نقشبندیه طریقه کې ورته د ارشاد اذن وشو.

له فراغت وروسته نوموړي په تدریس او اصلاح سربیره د دین تبلیغ په لاره کې هم خدمت ته ملا وتړله، باید وویل شي چې نوموړی لومړنی کس و چې کندهار ته یې ددین د دعوت او تبلیغ هغه ټولګي راوغوښتل چې دهند دستر عالم مولانا الیاس صاحب لخوا یې د تشکیل بنسټ ایښودل شوی او په درسته نړۍ کې یې دتبلیغ چارې پیل کړې وې، پخوا ددعوت د لارې دغو ټولګیو ته په افغانستان کې خلکو دشک او بدګمانۍ په سترګه کتل خو شیخ ذاکري صاحب له هراړخیزې پلټنې وروسته دوی کندهار ښار ته رادعوت کړل چې په دې ډول دخلکو دباور وړ وګرځیدل او شیخ صاحب خپله مدرسه د دعوت تبلیغ مرکز وګرځوله.

دغه راز شیخ ذاکري صاحب د علمي خدمت په لړ کې د کندهار ښار په کابل دروازه کې د دارالعلوم صدیقیه په نوم یوه ستره مدرسه تأسیس کړه چې تر ډیره وخته یې ددیني علم د خپراوي په لاره کې ستر خدمتونه ترسره کړل، دغه مدرسه چې د مولوي محب الله اخندزاده، مولوي عبدالغفور سناني، محمدرسول اخندزاده او مولوي عبیدالله ایوبي صاحب غوندې ستر ستر علماء کرام په کې استادان وو، دطالبانو شمیر یې ۵۰۰ کسانو ته رسیده، چې د ۱۳۰ په شاوخوا کې طالبانو یې په دورة الحدیث کې شرکت درلود او کال په کال فارغیدل.

که څه هم په شاهي دوران او بیا د داود خان د جمهوریت په وخت کې په افغانستان کې ددیني علماء او دیني مدارسو په وړاندې ډیر زیات مشکلات او خنډونه موجود و، خو شیخ ذاکري صاحب په پوره زړورتوب او متانت سره د ثور د کودتاه تر وخته خپله مدرسه فعاله وساتله او په هماغو سختو شرایطو کې یې ددیني علم د خپرولو په لاره کې نه هیردوندوکي خدمتونه سرته ورسول.

د کمونیستانو کودتاه او دشیخ صاحب زنداني کیدل

کله چې دکمونیستانو لخوا د ۱۳۵۷هـ ش کال د ثور په اوومه نیټه پوځي کودتا رامنځته او دین دښمنه کمونیستان واک ته ورسیدل، ددوی لومړی کار په مدارسو او دین پالو اشخاصو بریدونه و، دهیواد دزرګونو علماء کرامو او مشائخو غوندې کمونیستانو له کودتا دوه اونۍ وروسته شیخ ذاکري صاحب هم ونیو او مدرسه یې وربنده کړه، د کمونیستانو لخوا د لومړي ځل بندي کیدلو په وار شیخ صاحب څلویښت شپې دکندهار په زندان کې تېرې کړې او له هغه وروسته راخوشی شو، خو څه موده وروسته نوموړی بیا ونیول شو چې دا ځل یې لس نیمي میاشتې په کندهار او کابل کې د کمونیستانو په وحشي زندانونو او توقیف خانو کې تیرې کړې.

د کندهار په زندان کې د شیخ صاحب تاریخي او جرأتمندانه کردار تراوسه د هغه مهال د زندانیانو په یاد پاته دی، په دې اړه د هغه مهال دکندهار یو زنداني قاضي عبیدالرحمن صاحب وایي: زه دکندهار په زندان کې بندي وم، دکمونیستانو زندان و، چې دهر عادي عسکر لخوا وژل کیدل، اعدام او شکنجه عادي خبره وه، هرعادي

کمونیست دوژلو پوره واک درلود ، په زندان کې سخت وحشت و ، چې هیچا غږ نه شوای پورته کولای او نه یې له کمونیستي جلادانو سره ځواب ویلای شوای ، مګر یوه ورځ یې یو تن زندان ته راووست ، چې زندانیانو ته یې نوې روحیه ورکړه او دمحبس وضعیت یې بدل کړ ، داسړی عبدالله ذاکري وو ، سخت تعذیبونه یې ورکړي وو او ولچک یې لاسونو ته سرچپه وراچولي وو ، مګر له ټول ځور سره سره یې خلقیانو ته داسې خبرې کولې ، چې چا یې تصور نه شوای کولای ، هغوی یې کفار او دروس غلامان بلل او په ډاګه یې د جهاد خبرې کولې ، مشاجرې یې ورسره کولې او ګواښونه یې ورته کول، کمونیستانو په ډیرو تعذیبونو کوښښ وکړ چې دده خوله وربنده کړي مګر ونه توانیدل ، که هغوی به دمرګ ګواښ ورته کاوو ده په ډاګه ورته ویل چې شهادت ته اماده یم ،پخوا چې بندیانو له ډاره لمونځونه نه شوای کولای ، ذاکري صاحب په کندهار زندان کې په لومړي ځل اذان او د جماعت لمونځ شروع کړل ، چې ډیر بندیان به ورپسې په جمعه ولاړ وو .

د کندهار ولایت اوسیدونکی مولوي عبدالستار صاحب هم په دې اړه دنوموړي دجرأتمندانه کردار یادونه کوي او وایي، په زندان کې په جهادي موقف درلودلو سربیره یو وخت جناب ذاکري صاحب په کندهار کې دخلقیانو والي انجنیر ظریف او دوزیرانو په شمول د کمونیستي حکومت نورو لوړرتبه چارواکو وروغوښت او له جهاد څخه دلاس اخیستو په مقابل کې یې د پیسو ،ډیرمادیاتو او منصب وړاندیز ورته وکړ، حتی دایې ورته وویل چې تاته به حکومت کې اوقاف وزارت درکړو ،موټر او شخصي هلیکوفتر به دې په اختیار کې وي، خو شیخ صاحب ورته وویل چې که تاسو اسلام ته متعهد یاست، قبله مو بیت الله او رهبر مو حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وي، نو نه یوازې زه بلکې ټول اولس مو ملاتړی دی، مګر که رهبر مو لینن وي،او قبله مو مسکو او د کمونیزم په قانون عقیده لرئ،نو له تاسو سره جهاد فرض دی، که ددې ولس خلک له جهاد لاس واخلي نو د وطن کاڼي او غرونه به له تاسو سره جهاد کوي ځکه دا داسلام خاوره ده او کفري نظام نه قبلوي.

د کندهار اوسیدونکی حاجي سیف الله کامران چې دکندهار په زندان کې له شیخ ذاکري صاحب سره په یوه اطاق کې پاته شوی دی وایي: د کندهار له زندانه به چې کمونیستانو څوک وایستل نو هغه ژوندي نه پاته کیدل ځکه دمرګ فیصله به یې شوې وه،خو یوه شپه یې شیخ صاحب له نورو زندانیانو سره یوځای ویوست، خو لږ وخت وروسته یې بیرته راووست،موږ ګو ځله ترې پوښتنه وکړه چې څرنګه بیرته راغی او راخلاص شو ،شیخ صاحب حال راته نه وایه،خو زما د ډیر ټینګار له امله یې وروسته راته وویل چې کله کمونیستانو په موټر کې کینولم او داعدام ځای ته یې بیولم،زه لږ وارخطا شوم ، ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم رابطه ونیوله (رابطه د تصوف یوه ځانګړې اصطلاح ده )په دې وخت کې مې احساس کړه چې له هاتفي اوازه راته په غوږ کې ویل کیږي. لاتخف و لاتحزن نجوت من القوم الظلمین. همدا وه چې کمونیستانو زه له موټره بیرته راښکته کړم او محبس ته یې راوستم.

سره له دې چې د شیخ صاحب جرأتمن موقف او جهادي خبرو ته په پام سره چا تصور نه کاوو چې نوموړی به د کمونیستانو له زندانه خلاصیږي، خو الله تعالی نوموړي ته نجات ورکړ او د روسانو له یرغل لږ موده وړاندې نوموړی له زندان څخه خلاص شو ،د ۱۳۵۸هـ ش کال د جدي په ۲۲ مه نیټه نوموړي د خپل ځان او کورنۍ دامن په خاطر او دجهاد په اراده دهجرت لار ونیوه او له کندهار څخه یې د بلوچستان کویټې ته هجرت وکړ.

## د کمونیزم په خلاف جهاد

د کندهار ولایت اوسیدونکی ملا محمد رسول د صدیقیې مدرسې له وخته د شیخ صاحب د شاګرد او خادم په حیث له نوموړي سره یوځای پاته شوی،او په ټولو جهادي سفرونو کې له نوموړي سره ملګری و ، نوموړی وایي کله چې شیخ صاحب پاکستان ته هجرت وکړ، لومړی د جنوب اوغرب حوزې د لس ولایاتو عمومي جهادي مسؤل وټاکل

شو، چې د مجاهدينو درهنمايي او اکمالاتو وظيفه به يې ترسره کوله، شيخ صاحب دغه مسؤليت تر دريو مياشتو پورې وکړ، خو کله چې د ځينو قومندانانو او مالي کارکوونکو فساد ورته معلوم شو، نوموړی په ټينګه د هغوی په خلاف ودريد، تردې چې خبره جهادي رهبرانو ته ورسيده، داچې يو شمير مخکښ قومندانان په دې خورد و برد کې اخته وو، او تنظيمي مشرانو هم پرې سترګې پټولې شيخ صاحب د اعتراض په ډول له خپل مسؤليت څخه استعفاء ورکړه او ويې ويل چې زه نه شم کولای د خپل مسؤليت په ساحه کې دغه حالت وزغمم.

ملا محمد رسول اخند په دې برخه کې يو مثال ذکر کوي وايي يو وخت د مجاهدينو لپاره ځانګړې تفنګچې راغلې وې، شيخ صاحب غوښتل چې دا ټولې تفنګچې په کندهار ښار او نورو ښاري سيمو کې مجاهدينو چريکانو ته ورتقسيم کړي، خو ولايتي اميرانو او قومندانانو کوښښ کاوو، چې يوه يوه تفنګچه دځان لپاره وګرځوي، شيخ صاحب ددوی ددې خبرې سخت مخالف شو او ورته ويې ويل چې تاسو نه شرميږئ چې د جهاد مال په شخصي توګه استعمالوئ، مجاهدين وسلو ته ضرورت لري هغوی په دې تفنګچو اسلام ساتي خو تاسو ورباندې خپل ځانونه ساتئ، اول حق دهغوی دی.

شيخ صاحب دغه ډول په قومندانانو پسې دوسلو او پيسو د تقسيم په برخه کې حسابونه راواخيستل او په دې برخه کې يې له ستر اختلاس څخه پرده پورته کړ، کله چې يې په دې اړه د تنظيمي مشرانو سوړ چلند او چشم پوشي وليده، نو يې استعفاء ورکړه.

له استعفاء وروسته شيخ صاحب خپل دفتر درلود، په داسې حال کې چې په هيڅ تنظيم کې يې غړيتوب نه درلود، له مجاهدينو سره يې پرته له تبعيضه په مختلفو بخشونو کې مرستې کولې، نوموړی به په کيمپونو ګرځيده علماء او عوام يې جهاد ته دعوتول دغه رنګه هغه علماء او ناچاره مجاهدين چې بې وسه به وو مرسته يې ورسره کوله.

د هجرت په ديار کې په جهادي او اصلاحي هڅو سربيره نوموړی بيابيا افغانستان ته هم تلو او په جهاد کې يې ونډه اخيستله، ملامحمد رسول چې په دې ټولو سفرونو کې له شيخ صاحب سره يوځای و، وايي نوموړي لومړنی سفر هلمند ولايت ته وکړ هلته چې د رئيس عبدالواحد او نسيم اخندزاده په نوم ددوو مشهورو قومندانانو ترمنځ جنجال و شيخ صاحب په خپلو هڅو سره ددوی ترمنځ جنجال ختم کړ او ترمنځ يې صلح وکړه.

له هغه وروسته شيخ صاحب د افغانستان جنوب او مرکزي سيمو ته مکرر سفرونه وکړل، په دې لړکې نوموړي يو مهم سفر د ۱۳۶۴هـ ش کال داسد مياشتې په ۹ نيټې پيل کړ، په دې سفر کې نوموړی زابل ته لاړ په دې ولايت کې يې د ملامدد او نورو محلي قومندانانو په جهادي کيمپونو او مراکزو وګرځيد، د قلات، ميزانې او نورو سيمو له ليدلو وروسته کندهار ته لاړ دارغنداب، محله جات، ژنګاوات، پاشمول، او تقريبا د کندهار د ټولو ولسواليو په جهادي جبهو وګرځيد او له هغه وروسته روزګان ولايت ته لاړ.

د اسلامي امارت پخواني د بهرنيو چارو وزير او د شوروي ضد جهاد وخت وتلی مجاهد ملامحمد غوث اخند وايي، شيخ ذاکري صاحب داسې وخت روزګان ولايت ته راغی چې په روزګان کې د شورويانو په خلاف په دهراوود کې ستر جنګ روان و، د دهراوود دغه جنګ يو له سختو جنګونو و چې تقريبا دوه نيمې مياشتې يې وخت ونيو، د روسانو ګڼ شمير طيارې په کې نسکورې شوې او دواړو خواوو سخت تلفات ورسيدل، شيخ ذاکري صاحب دهمدې جنګ په مهال په سيمه کې و او له مجاهدينو سره يې اوږه په اوږه په جهاد کې برخه اخيسته.

د شيخ صاحب دې جهادي سفر شپاړس مياشتې وخت ونيو چې په ټولو کې يې په عملي جهاد سربيره مجاهدينو ته لارښوونې کولې او د جبهاتو ترمنځ اختلافات يې له منځه وړل.

شيخ صاحب په ۲۹/۴/۱۳۶۶ هـ ش نيټه د يوه بل ۸ مياشتني سفر په لړ کې د زابل د اتغر په لار، قلات

سرخګان، او له هغه ځایه کندهار ته لاړ، د کندهار په مختلفو سیمو له ګرځېدو وروسته هلمند ته لاړ او هلته یې د بېلابېلو جبهاتو له مجاهدینو سره ولیدل او لازمې لارښوونې یې ورته وکړې.

د نوموړي بل مهم سفر د ۱۳۶۷ هـ ش کال د حمل په ۲۱ مه پیل شو په دې سفرکې نوموړی د ریګ له لارې کندهار ته لاړ، هلته یې د ۶ میاشتنیو هڅو په لړکې د ټولو جبهاتو مجاهدین سره متحد کړل، ترڅو په کمونیستي رژیم باندې په هماهنګه توګه بریدونه پیل کړي.

په دې ټولو سفرونو کې د شیخ صاحب هڅه داوه چې مجاهدینو ته لازمې لارښوونې وکړې، د جهاد علیا اهدافو ته یې متوجه کړي، له فساد، ظلم، اختلاف او ناروا تجاوزاتو څخه یې وساتي، دغه راز یې د مختلفو تنظیمونو دقومندانانو او مجاهدینو ترمنځ خپل اختلافات هم له منځه وړل او د اصلاح هڅې یې کولې.

شیخ صاحب که څه هم دکوم تنظیمي رسمي غړیتوب یې نه درلود خو په جهاد کې یې فعاله ونډه اخیسته، نوموړی یوازینی کس و چې ټول تنظیمي مشرانو ته یې سپیني خبرې کولې او خپلو اشتباهاتو ته یې متوجه کول، د مجاهدینو اکمال، معالجه، دیتیمانو او بې وسه مهاجرینو کفالت او له هغوی سره مرسته، دعلماء کرامو پالنه او ورسره مرسته دنوموړي له مهمو مصروفیتونو څخه و، هغه مهال چې دجهاد ځیني اکمالاتي حلقات په دې هڅه کې وو چې جهادي تنظیمونه نور هم زيات کړي او په دې توګه دمجاهدینو د اتحاد مخه ونیسي، شیخ صاحب ته په بېلابېلو طریقو پیشنهادونه وشول، چې جلا تنظیم اعلان کړي خو شیخ صاحب دا غوښتنې ونه منلې ځکه نوموړي د ګوندونو تعدد ستره فتنه بلله او کوښښ یې کاوو چې شته تنظیمونه سره نږدې او متحد کړي.

## د اتحاد علماء افغانستان تأسیس

د شورویانو له تیښتې وروسته د نجیب دواکمنۍ په مهال چې د جهادي تنظیمونو ترمنځ د نفاق او ذات البیني نزاع علامې راڅرګندېدلې، دغه راز نوي راوارد شوي افکار او عقائد هم دافغانانو ترمنځ د خپرېدو په حال کې وو جناب ذاکري صاحب د یو شمیر نورو جیدو علماء کرامو سره په ګډه د همدې مشکلاتو دمخنیوي لپاره په سلګونو علماء کرام راغونډ کړل او دیوه غیرسیاسي اصلاحي اتحاد پیشنهاد یې ورته وکړ، ددې اتحاد هدف دا و چې دا به یو اصلاحي ټولنه وي، د ټولنې اصلاح، د مجاهدینو ترمنځ ثالثیت او نور د خیر کارونه به ترسره کوي، ددې اتحاد لومړنۍ غونډه چې د ۱۳۶۷هـ ش کال د قوس په ۱۲ مه ترسره شوه ۷۰۰ علماء کرامو په کې ګډون درلود، ددې غونډه په پایله کې دافغانستان دعلماء داتحاد منشور په پنځو فصلونو او ۴۴ مادو کې تصویب شو.

د شیخ ذاکري صاحب په مشرۍ اتحاد علماء افغانستان د افغانستان او اسلامي نړۍ د قضایاوو اړوند خپل مسؤلیت په ډېره ښه توګه ترسره کړ، د علماء کرامو دې ټولي مسلسلې غونډې درلودې او په هغو کې یې د بېلابېلو مسائلو او قضایاوو په اړه بحثونه کول او بیا یې هغه د فتاوو او پیغامونو په حیث نشرول، له عادي فقهي مسائلو واخله بیا تر سترو سیاسي پیښو او قضایاوو پورې اتحاد علماء افغانستان په ټولو برخو کې د خلکو رهنمایي کوله.

۱۹۹۱ م کال کې د خلیج د جنګ په مهال امریکا د صدام د مخنیوي تر عنوان لاندې په لسګونو زره پوځیان جزیرة العرب ته داخل کړل، شیخ ذاکري صاحب او دده ملګرو دامریکایانو دغه اقدام په سختو ټکو وغانده او له بي بي سي راډیو سره په مرکه کې یې دامریکایي متجاوزو عسکرو خلاف جهاد په مسلمه امت فرض عین وباله، په افغانستان کې دتنظیمي جګړو په مهال هم ذاکري صاحب بیا بیا کابل ته لاړ او دمخالفو جهتونو ترمنځ د اوربند او صلحې کوښښونه یې وکړل، دغه راز یې تنظیمي رهبران دې ته هڅول چې له جګړو او فساد څخه لاس واخلي او داسلامي شریعت د تطبیق لپاره کار وکړي، په دې لړکې نوموړي بیا بیا خپله وجیبه ترسره کړه د تنظیمي جګړو د مخنیوي لپاره یې ۱۱ ځله کابل ته سفر وکړ او د یو مخلص ،

جرأتمند او غیور مؤمن په حیث یي تنظیمي جګړه مار مشران خپلو غلطیو ته متوجه او تأدیب کړل.

د اتحاد علماء افغانستان تنظیم لخوا په افغانستان دامریکا یرغل هم وغندل شو او دامریکا خلاف جهاد په فرضیت یي فتوی صادره کړه، دغه راز د نړیوال استکبار د اسلام ضد هڅو په وړاندې لکه د توحید ادیان تر نامه لاندې ګمراهانه هڅه، په مصر کې د ډاکټر مرسي د اسلامي ګوند حکومت نړولو او داسې نورو قضایاوو په اړه خپل دریځ روښانه کړی او دنړیوال کفر ټول دسائس یي بربنډ ول.

د شیخ ذاکري صاحب په مشرۍ دعلماء کرامو دې ډلې په لسګونو مسائلو باندې ځانګړې خیړنه کړې او دفتوی په شکل یي ترخلکو رسولي دي، دغه راز یي وخت په وخت د اسلامي هیوادونو مشرانو او مخکښو څیرو ته بیا بیا تنبیهي او اصلاحي لیکونه استولي چې شمیر یي ۵۰۰ ته رسیږي.

## دامریکا په خلاف جهاد

شیخ ذاکري صاحب په خپلو شخصي وظایفو او محلي اصلاحي چارو سربیره له سیاسي مسائلو څخه هم بې پروا نه و، نوموړي داسلامي امارت د واکمنۍ په مهال مسلسل افغانستان ته سفرونه درلودل نه یوازې یي دامارت چارواکي اصلاح ته دعوتول، بلکې داسلامی امارت زعیم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد ته یي هم همیشه نیکې توصیه کولې، نوموړي داسلامي امارت او مخالفینو ترمنځ په صلحه کې هم څو ځلې کوښښونه وکړل.

کله چې امریکایانو په افغانستان دحملې اراده وکړه، شیخ صاحب د یوې فتوی په صدور د امریکا په خلاف جهاد فرض عین وباله نوموړی له امریکایي تجاوز څخه لږه موده مخکې افغانستان ته لاړ، د هیواد په ګڼو جنوبي، مرکزي او جنوب ختیځو ولایاتو وګرځید، له عامو خلکو او علماء کرامو سره یي ولیدل او دجهاد دعوت یي ورکړ.

نوموړی د امریکا خلاف د روان جهاد کلک حامي و، په غونډو، مجالسو او حتی د رسنیو له لارې یي همیشه خلک دامریکا په خلاف جهاد ته رابلل، او داشغال په صورت کې هرډول صلحه یي د اسلام له اساساتو سرغړونه بلله

شیخ صاحب په ډیر جدیت د هغو تش په نامه علماء خلاف و چې امریکایي یرغل د نړیوالو مرسته بولي او جواز ورکوي، نوموړی د سعودي عرب د یوه مفتي په ځواب کې چې دامریکا په خلاف جهاد یي نامشروع باله، وویل چې دغه مفتي یا خو جاهل دی چې له اسلامه نه دی خبر او یا هم دجال دی، چې خلک دوکه کوي او له ځانه یي دکفر مدافع وکیل جوړ کړی دی.

شیخ ذاکري صاحب لکه څنګه یي چې په لومړي ځل په ۱۹۹۱ م کال کې د حجاز په اسلامي خاورو د امریکایي یرغل په وړاندې دجهاد فتوی ورکړې وه د ژوند ترپایه په هماغه جهادي موقف مستقیم پاته شو، او امریکایي د اسلامي امت ستر دښمن باله.

نوموړي دافغانستان په قضیه کې خپل موقف په لاندې ټکو کې خلاصه کړی و.

۱- امریکا دې په خپله ناکامي په ښکاره اعتراف وکړي

۲- خپل وحشي او ظالم پوځیان له دې افغانستانه وباسي

۳- افغانانو ته دې د یرغل او جګړې په پایله کې د رسیدلو ځاني او مالي زیانونو تاوان ورکړي، دافغانستان له چارو دې لاس واخلي افغانان چې په خپل همت نړیوال استعمارګر ماتولی شي که نړیوال ترې لاس واخلي خپل هیواد هم په خپله جوړولای شي.

په دې وروستیو کې چې دامریکایانو ددایمي اډو موضوع مطرح شوه، شیخ صاحب په ډیر جدیت سره ددې اډو په وړاندې ودرید حکومتي چارواکو یي تهدید کړل چې باید ددې ترون له امضاء څخه لاس واخلي دغه راز یي په رسنیو کې په خپلو مرکو کې ددې اډو په مخالفت د پام وړ مرکې ترسره کړې، دا چې شیخ صاحب په همدې حساس وخت کې د نامعلومو قاتلانو د برید هدف وګرځید داسې ګمان کیږي چې کیدای شي امریکایي استخباراتي قاتلانو د یادې موضوع په اړه د شیخ صاحب د موقف له امله نوموړی په نښه کړی وي.

## امر بالمعروف و نهی عن المنکر

شیخ صاحب لکه څنګه چې ځان له حرامو او مشبهاتو ساتلی و او همیشه یې نیک کارونه، اذکار، وظائف او خیریه چارې ترسره کولې، نورو ته یې هم تل په نیکو کارونو امر کاوو او د حرامو اوناروا کارونو په مقابل کې یې په جدیت سره مبارزه کوله.

نوموړي د بدعاتو، غیرشرعي طریقو، غربي کفري افکارو، فحاشۍ، عریانۍ او نورو فتنو د مخنیوي لپاره تل هڅه کوله، نه یوازې یې په خبرو او موعظو کې خلک تنبیه کول، بلکې دفتواوو په صدور او رسالو په اشاعت سره یې کوښښ کوو، چې د ګناهونو مخه ونیسي، نوموړی د فلمونو، تصویرکشۍ، ټي وي، کیبل، له غیراسلامي هیوادونو د غوښو د راوارېدو او دغه راز د بانک د سودي نظام، غربي اینجیو ګانود فعالیت، غربي تعلیمي طریقې او نورو غیراسلامي پدیدو سخت مخالف و.

دغه راز نوموړي د خلکو ددیني تعلیم او ارشاد لپاره همیشه هڅه کوله په دې لړ کې یې په **۱۴۳۳** هـ ق کال کې په جوماتونو کې دخلکو د ارشاد او دیني تعلیم لپاره یوه جامعه طریقه جوړه کړه او علماء کرام او امامان یې وګومارل چې د خپل جومات عامو خلکو ته د دیني ضروریاتو درسونه وښیي.

## لیکلي آثار

شیخ صاحب په خپل علمي ژوند کې ګڼ شمیر آثار لیکلي دي چې دځینو نومونه یې په لاندې ډول دي.

الاذکار و فضائلها، التصوف و مقاماته العشرة فی ضوء القرآن والسنة، الافتاء فی عدم جواز التصاویر والاوثان، اقوال المفسرین والفقهاء الحنفیة فی موجب السعی الی صلوة الجمعة و ترک التجارة، تنبیه الاخوان علی استماع قرأة القرآن، التحقیق الاتم فی مسئلة لبس الخاتم، اقوال العلماء فی منع خروج النساء، العجالة النافعة فی سقی النفس العاطشة، تبدیل النسب ومذمته فی الاسلام، القول الفاصل بین الحق والباطل، حکم الشوری فی الشریعة الغراء، فصل الخطاب فی تشریح الخضاب، البیان الوافی فی بیان حکم المعازف والمزامیر و الملاهی، حکم الهجرة فی الشریعة المنورة، اشراط الساعة، اقوال الاخیار فی تشریح مولد النبی المختار، بیان المغرورین و علاجهم، اثبات الکرامة بالقرآن والسنة، علاج الاسقام بالحجامة فی الاسلام، القول المفصل فی خواص العسل، الاستشفاء باستعیال الحبة السوداء، حکم اللحوم المستوردة من دول الکافرة، القول الجمیل فی فضیلة دعاء الخلیل، زاد الابرار الاستغفار بالاسحار، الدر المکنون فی فضیلة دعاء ذی النون علیه السلام، الاحادیث الشریفه فی فضیلة الحوقله ... و غیره

## شهادت

شیخ ذاکري صاحب د **۱۴۳۵** هـ ق کال د ربیع الاول د میاشتې په ۲۸ مه نیټه چې د لمریز کال **۱۳۹۲** د سلواغې له نهمې سره برابره وه د چهارشنبې په ورځ، کله چې د ماسپښین دلمانځه له امامت او اداء کولو وروسته د سنتو داداء کولو لپاره کور ته روان و، د مسجد په صحن کې دروازې ته نږدې د دوو تنو ناپیژانده کسانو لخوا وربانديي ډزې وشوې، د صحنې دشاهدانو شیخ صاحب په زړه له لګیدلو وروسته یوازې الحمدلله الفاظ وویل او مخ په قبله وغورځېد، او د شهادت جام یې نوش کړ. اناالله وانا الیه راجعون

د شیخ صاحب د جنازې لمونځ یوه ورځ وروسته د پاکستان د بلوچستان ایالت دمرکز کویټې په ایوب سټېډیم کې د لسګونه زره ګډونوالو په شرکت سره ترسره شو، چې د افغانستان او پاکستان ګڼ شمیر مشهورو علماء کرامو او مشایخو هم په کې ګډون کړی و، د نوموړي دجنازې لمونځ دده د زوی جناب مفتي عبدالقیوم الذاکري صاحب لخوا اداء شو او د همدې ورځې په ماښام شپږ بجو د کویټې سبزل روډ ته څیرمه د ذاکري مسجد سره نږدې دمدرسې په داخل کې خاورو ته وسپارل شو.

له شهادت وروسته نوموړي ته د دارالعلوم حقانیه مدرسې د شیخ الحدیث او داسلامي نړۍ د ستر عالم دکتور شیرعلي شاه مدني صاحب لخوا د (شیخ الشهداء) لقب ورکړل شو، چې وروسته همدالقب د سترو علماء

کرامو مفتی محمد تقي عثماني، شیخ الحدیث مولانا حمدالله داجوي ، مفتي زرولي خان صاحب او نورو علماء کرامو لخوا هم تائید شو.

## ځیني خاطرې

د شیخ صاحب ژوند ګڼ اړخونه درلودل، نوموړي یو مصروف او پرحادثه ژوند درلود ، په دې لنډه لیکنه کې د نوموړي دژوند په ټولو جالبو پیښو احاطه ناممکنه بریښي اما کوښښ کوو چې د ژوند بعضې جالبو خاطرو ته یې اشاره وکړو

### د زابل اوسیدونکی مولوي عبدالقادر وایي:

د شهید ملامددد دجبهې مجاهد ملاخیرالدین راته کیسه کوله چې د روسانو خلاف د جهاد په وخت کې شیخ ذاکري صاحب زابل ته راغلی و ، کله چې زموږ جهادي مرکز ته راغی په دې سیمه دښمن حمله وکړه او عملیات یې پیل کړل، زیاتره مجاهدینو دغرو په خوا لاړل او ځانونه یې متواري کړل، خو ذاکري صاحب د نورو خلاف په یوه ډېره سنګر ونیو اوددښمن په طیارو یې د کلاشیکوف ټکان پیل کړل، د مجاهدینو یوه ځایي مسؤل ملا عصمت ورته وویل چې شیخ صاحب د ماشیندار مرمۍ طیارې ته نه رسیږي، خدای نخواسته کوم تاوان درته ونه رسوي.

شیخ صاحب ځواب ورکړ: نارې مه وهه، رسیدل یې په ما او تا لازم نه دي، هغه بل مالک دی، په موږ یوازې د کافرو ویشتل فرض عین دي.

د شیخ صاحب د کورنۍ د غړو او نږدې متعلقینو په وینا نوموړي ته الله تعالی د تقوی او توکل تر څنګ د شجاعت او زهد صفت هم ورکړی و ، شیخ صاحب درست عمر خپل جهادي دریځ په پوره جرأت سره بیاناوو ، نوموړي به خپله ویل چې دا دالله تعالی احسان دی چې زما زړه په ایمان دومره مطمئن دی چې ددنیا دلویو کفري قوتونو او حکومتونو څخه یوه ذره خطر په زړه کې نه رالویږي او نه ورته د مچ د وزر غوندې په حیثیت قائل یم، ځکه زما پردې ایمان دی چې خدای یو دی او ډیر خدایان نشته، د کائناتو فیصلې یوازې دهغه ذات جل جلاله په تصرف کې دي، د مرګ او ژوند ، عزت او ذلت، تکلیف او راحت او د ژوند د ټولو پیښو اختیار یوازې له الله تعالی سره دی او ټول دالله تعالی د ارادې او تقدیر له مخې کیږي، نو په داسې حالت کې به ولې مؤمن له بل چا څخه د ډار احساس کوي !

د شیخ صاحب د زهد او له دنیا څخه د بې پروایۍ صفت هم ډیر بارز و ، نوموړي له منصب ، حکومت او چوکۍ سره نه یوازې مینه نه درلوده بلکې نفرت او کرکه یې ترې کوله، په تیرو **۳۵** کلونو کې په افغانستان کې مختلف حکومتونه راغلل او لاړل په دې جریان کې هرچا په حکومتونو کې یوځه پیدا کړل، خو دشیخ صاحب ترپایه هماغه د غربت ژوند و ، نوموړي ته بیا بیا ډیر مواقع په لاس ورغلل او په امتحاناتو کې واقع شو خو الله تعالی په دې ابتلاوو کې بریالی کړ، نوموړي به ویل که ما غوښتی چې پیسې او زر جمع کړم نو ما به د زرو خښتې جمع کړې وای ، خو نوموړي تر پایه دغربت ژوند ته ترجیح ورکوله نوموړی تر **۱۴۳۱** هـ ق کال پورې په د بل چا په یوه معمولي سرای کې ګوزاره کوله، په همدې کال د کویټې دشالدرې مدرسې مهتمم شیخ الحدیث حافظ عبدالواحد صاحب لخوا ورته په سبزل روډ خپله شخصي ځمکه هبه شوه، او د قاري غلام حضرت صاحب چې اصلا د کندهار او اوس د کویټې اوسیدونکی دی لخوا ورته په همدې ځمکه کور او مدرسه جوړ کړای شول، چې نوموړی په وروستیو کلونو کې همدې کور ته رامنتقل شو او د شهادت ترنیټې یې همدلته ژوند کاوو.

د شیخ صاحب د ژوند خاطرات او خواږه یادونه خورا زیات دي خو داچې د مطلب د ډیر تطویل باعث ګرځي په همدې کفایت کوو الله تعالی دې دشیخ صاحب شهادت قبول او په اخلافو کې دې الله تعالی دده امثال پیدا کړي.

آمین یارب العلمین.

# د اردو عسکر ه چا سره جنګیږي؟

ع غریب (فاروق

عسکرجانه نن مې زړه غواړي چې تاسره خواله وکړم ، ځکه لویانو او مشرانو ته خلکو ډېرې زارۍ وکړې چې ستونزه په خبرو هواره کړئ او په جنګ جګړو خپل ځانونه او هېوادوال مه تباه کوئ ، خو دوی یې نه مني او وایي نه والله که شي خامخا به یې سره معلوموو. البته دوی سوله او مرکه نه غواړي او پر جګړو ټینګار کوي خو بیا هم شخصاً خپله نه ټوپک را اخلي او نه پر چا ډز کوي. جنګ ما او تا کوو او ټوپک هم زما او تا او زموږ غوندې غریبو او بې وزلو پر اوږو دی ، نو راځه چې همدا زه او ته خبرو ته سره کېنو او وګورو چې ته ډېر پړ یې او که زه ناړامه یم ؟!

یعنې ته په کوم نیت او چا سره جنګیږې او زه څه غواړم ؟زما او ستا خبره ځکه مهمه ده چې دا جګړه ما او تا روانه کړې او که موږ ووایو چې نور پر خپلو هېوادوالو برید نه کوو نو ستا څه خیال دی چې له ارګه به کوم بوډا جګړې ته راووځي ؟نه هیڅکله نه. نو له همدې امله ما او تا ډېر مهم یو او په کار ده چې لومړی یې همدا زه او ته سره معلومه کړو.

ګوره عسکر جانه !زه دا منم چې ته مې خپل کلیوال یې ، د دې هېواد سړې ، تودې ، غم او ښادي او له تېرو دیرشو کالو راهیسې ګردې ناخوالې مو په ګډه تېرې کړې. ته هم عقل لرې ، وجدان لرې او پر خپل هېواد او خلکو به دې خامخا زړه دردیږي خو نه پوهېږم ولې ... ؟په دې هم پوهېږم چې تا به لا کوزده نه وي کړې او د عسکرۍ په څو میاشتې مزدورۍ به د ولور پیسې برابروې. یا به د کور لپاره کومه نومره ځمکه اخلې او یا به دې ځمکه اخیستې وي خو کور به پرې جوړوې. دا ټول حاجتونه دې منم خو ګوره چې د مسلمانانو پر وژلو ، وهلو او ترټلو ګټلې پیسې ډېرې بې برکته وي. ته په دې هکله لږ سوچ و فکر وکړه. اول خو دا وګوره چې ته دا ټوپک را اخلې او کارتوس تر ملا ترې نو چا سره د جګړې پر نیت ؟آیا کومه ورځ دې چېرته په زړه کې راغلي چې زه به کوم پرنګي ، یهودي ، روسي او یا هندو سره وجنګیږم ؟آیا له تېرو دیارلسو کالو راهیسې دې پر کوم داسې کس ډز کړی چې کلمه نه وایي ؟

ګوره عسکر جانه تا ته به هره ورځ خپل مشران وایي چې وطن وساتئ او د هېواد له دښمنانو سره وجنګیږئ ! خو ګوره ته خو لږ فکر کوه !تر څو به د نورو په عقل چلیږې ؟ته نه پوهېږې چې زموږ په هېواد کې دا اته څلویښت جنډې د چا ولاړې دي ؟دا لویې اډې ، زندانونه او هر لور ته د توپونو او ټانګونو کتارونه د چا دي ؟دا پاس هوا کې په سلګونو الوتکې د چا دي ؟دا چاپې او بمبارۍ د چا له خوا او پر چا دي ؟او دا بې پیلوټه الوتکې چې زما او ستا د هېواد لروبر کې هره ورځ یو شمېر هېوادوال په شهادت رسوي ، د چا په امر چلیږي ؟

الله تعالی خو وایي دا خلک ستاسې دښمنان دي. اوس نو که یو کس شپه ورځ کلمې وایي خو بیا له دغسې یرغلګرو سره انډیوالي او دوستي پالي نو په دنیا کې به یې څه حال وي او په اخرت کې به څه ورسره کیږي؟ زه نه پوهیږم ته چې دا وطن ساتې نو له چا یې ساتې؟! دښمن خو دې څنګ ته ولاړ دی، آلوی شیطان او د خدای او رسول دښمن! نو ته چا سره جنګیږې؟ او دا وطن له چا ساتې؟ ایا ته نه پوهیږې چې له تېرو دیارلسو کالو راهیسې دا څوک دي چې وژل کیږي، نیول کیږي، پلټل کیږي او زندانونو کې شکنجه کیږي؟ په دې نظام کې څوک خپه دي او څوک غره ته ختلي چې بهرنیان له پاس هوا او تاسې له ځمکې ورپسې یاست؟ ایا همدا ستا د کلي مولوي صاحب، قاري صاحب، امیر صاحب، معلم صاحب، طالب او محصل خپه دي او که خلقي، پرچمي، شراب خور، ډم، زنا کار او غل. آیا ته ویلای شې چې له تېرو دیارلسو کالو راهیسې کوم بې دینه، بې لمانځه، خاین او د اسلام دښمن د ولسوالۍ، ولایت یا مرکز په محبس کې بندي شوی وي؟ یا یې کور پلټل شوی او چاپه پرې اچول شوې وي؟

نو ګوره عسکر جانه لږ سوچ وکړه، د کفارو په خوله مسلمان ته دښمن او ترهګر مه وایه او هیڅکله د مسلمان د وژلو اراده مه کوه. او که بیا هم د جنګ جګړې څه زور و ځواک په ځان کې وینې نو د خپل ټوپک شپېلۍ د الله تعالی پر دښمنانو ورتاو کړه. راځه بیا هم وګوره چې ته له چا سره جنګیږې؟

## دغه خواړه د وینې فشار ټیټوي

**د غوره او روغ ژوند لپاره اړینه ده چې د وینې فشار نورمال وساتل شي. د وینې لوړ فشار په انسان کې د زړه حمله، ګردې ناروغۍ، ستر ګو لید کمزوري کیدو او نورو ډیرو ناروغیو سبب ګرځي.**

**د ناروغیو څخه مخنیوی لپاره د درملو استعمال که څه هم یوه اندازه ناروغۍ مخه نیسي خو ډیر نور زیانونه هم لري. خو دغه خواړه له استعمالولو سره په طبیعي ډول د وینې فشار ټیټولی شو.**

**۱- هوګه:**

**هوګه یو له هغه خواړه څخه دی چې په ورځنۍ ژوند کې استعمالیږي چې ځینې خلک دغه خواړه نه خوښوي. دغه خواړه د وینې لوړ فشار ټیټوي. روغتیایي څیړنو ثابته کړې چې دغه خواړه کې السین (Allicin) نومې مواد وجود لري کوم چې د وینې فشار او ذهني فشار له منځه وړي.**

**۲ -پیاز:**

**پیاز زیاته اندازه انټي اکسیډنټ فلاونول (Antioxidant Flavonol) او کویرستین (Quercetin) نومې مواد لري. څیړنو ثابته کړې چې دغه خواړه په انسان کې د فشار مختلف ډولونه نورمال ساتي. دغه خواړه د زړه فعالیت کمولو سره د وینې لوړ فشار ټیټوي.**

**۳ -دال چیني:(Cinnamon) دغه خواړه د وینې فشار په برخه کې معجزه کوي. دغه خواړه د وینې لوړ فشار ټیټولو سربیره انسان د شکر له حملې ژغوري. په دې وروستیو کې شوې یوه څیړنه ثابته کړې چې دال چینې استعمال له اوبو سره شکر ټیټوي.**

**۴ -نعنا:**

**د دغې بوټۍ په پاڼو کې زیاته اندازه کارواکرول (Carvacrol) نومې مواد وجود لري کوم چې د وینې فشار ټیټولو کې ډیره زیاته مرسته کوي. دغه خواړه په بدن کې د وینې مختلف ډول فشار له منځه وړي او د زړه فعالیت نورمال ساتي.**

**۵ -زیتون:**

**د زیتون غوړ د خواړه خوند زیاتولو سره د وینې فشار ټیټوي. د زیتون غوړ د نړۍ پر مخ یو له غوره غوړ څخه پیژندل کیږي کوم چې هیڅ ډول زیان نه لرې او بې شمیره ګټې لري.**

# حقوق بشر بزرگترین دروغ دنیا

در روز جهانی حقوق بشر این بزرگترین دروغ دنیا که حرف به حرف و کلمه به کلمه و ریشه به ریشه و زبان به زبان به خورد جهانیان داده شد ؛ بند بند حقوق بشر در مهد تمدن و فرهنگ و تکنولوژی و دموکراسی از هم می گسلد.

همزمانی افشای سرنوشت و سرگذشت زندانیان در بند نظامیان و سیاسیون امریکایی از تابعیت های مختلف مسلمان و غیر مسلمان در مجلس سنای امریکا مبنی بر نقض صریح حقوق بشر در مهد حقوق بشر بر مضحک بودن بیش از پیش این ترکیب دو واژه ای می افزاید.

منادیان حقوق بشر که همواره از این دستاویز برای انواع و اقسام اهداف سیاسی و نظامی و اقتصادی و فرهنگی خود سود جسته اند و بهره کشی کرده اند بزرگترین ناقضان این حقوق شده اند به گونه ای که حتی امریکا علیه امریکا سند رو می کند و دست به افشاگری می زند.

افغانستان گذشته از تمام مصایب و معضلات خودخواسته و خودخوانده ای که به حق در آن گرفتار آمده است و جز خودش هیچ مسببی برای سرزنش وجود خارجی ندارد ؛ در وضعیتی بسا بهتر و قابل تحمل تر از شهروندان امریکایی و اروپایی قرار دارد.

حقوق بشر برای مدعیان حمایت از آن نه حقوق تمامی نژادها و مذاهب و جنسیت و اقشار مختلف از کشورهای آفریقایی تا آسیایی است که صرفا در حقوق یانکی ها صرفا و صرفا در حقوق سفید پوستان یانکی و صرفا و صرفا و صرفا در حقوق مردان یانکی سفید پوست خلاصه می شود.

در مطبوعات و رسانه ها این روزها بسیار از وضعیت زنان مورد شکنجه، کودکان کار، معلولان و مجروحان افغانستان قلم فرسایی می شود اما قشری هستند در کیلومترها آنسوتر که زیر بار فشار تکنولوژی و توسعه زدگی ضد انسانی در دستگاه های سرمایه داری خرد و خاکستر می شوند.

این بار از زاویه ای متفاوت به زنان و کودکان امریکایی و اروپایی بنگریم که متحمل بیشترین کار بدون مزد برابر، بیشترین تجاوز جنسی و روحی، بیشترین تبعیض نژادی و مذهبی قرار می گیرند اما همواره هاله ای از قدرت پمپاژ رسانه ای آنها را محو می نماید.

چه بسیارند سیاهپوست ها ، سرخ پوست ها ، زرد پوست های متحمل انواع توهین ها و تبعیض ها و محرومیت ها ، چه بسیارند زنانی سرگردان و بی سرپرست و بدون حامی و بدون حقوق برابر با مردان، چه بسیارند کودکان رها شده و حاصل روابط نامشروع....

۶۲سال از ابداع ترکیب دو کلمه ای انسان و حقوقش برای پوشاندن غرض ورزی ها و امیال حیوانی گذشت و ما هنوز اندر خم یک کوچه ایم. ۶۲ سال است که لوح تقدیرهای حمایت از حقوق بشر میان دستان الوده به خون لندنی ها ، اورشلیمی ها ، پاریسی ها و نیویورکی ها دست بدست می چرخد و ما در افغانستان دم از مظلومیت می زنیم و هوای غرب در سر می پرورانیم.

## د انټرنیټ څخه د استفادې په وخت کې څو مسایل

لاندې څو ټکي بیانیږي تر څو کله د نټ عالم ته داخل شئ له هغه څخه د ګټې او فائدې سره ووځئ، نه دا چې وخت مو هم ضایع، بې ګټې او بې فائدې تیر شوی او یا حتی په ګناه کې اخسته شئ.

اول: خپل هدف مشخص کړئ، د څه د پاره او د څه په لټه کې یاست تر څو تاسې ته کار آسانه او وخت مو ضایع نشي، هدف او مقصد مو خاص د الله جل جلا له رضا وګرځوئ، د مشروع هدف په لټه کې ووسئ.

یوازې یو هدف وټاکی نه ډیر اهداف ځکه بیا به مو مشغول کړي او خپل هدف به تر لاسه نه کړئ.

دوهم: که په کوم سایټ او ویبلاګ کې اشتراک کول غواړې، څه مطلب لیکې یا څه تبصیره نو خپلو لیکلو ته ښه پام کوه، د ټولو ورونو سره داسې تعامل او سلوک کوه لکه څنګه چې ته یې د خپل ځان د پاره غواړې (که د ځان عزت او اکرام غواړې نو د نورو د عزت او اکرام خیال کوه)، څه چې لیکې په هغه کې له الله جل جلا له څخه ووېرېږه ځکه چې د هر حرف محاسبه به در سره کیږي نو داسې څه لیکه چې بیا یې ځواب ولرې.

دریم: د هر چا سره خپل زار مه شریک کوه، پر هر چا اعتماد مه کوه، تر څو خدای مه کړه څوک در ته ضرر ونه رسوي، الله (جل جلا له) تا د هغوی له ضرر او بدو وساته

څلورم: که کوم ورور له تا څخه مرسته او مدد غواړي د هغه نه خپله مرسته مه سپموه، الله (جل جلا له) به ستا سره مرسته وکړي.

پنځم: پخپل ځان اعتماد کوه، ناهیلې مه کوه، که کوښښ وکړئ په هر هغه څه به پوه شې کوم چې ستا د پاره ګټور وي، ناهیلې مه کوه.

د انټرنیت له لارې ډیرو ورونو او خونډو ډیر ګټور څیزونه زده کړی دي شپږم: د بې ګټې او ټولو هغو پاڼو چې منکرات او حرام خپروي له مطالعې او کتنې ځان ساته ځکه چې د هغه مطالعه تا ته څه ګټه نه لري او ډیر یې یوازې د خلکو د ګمراه کولو په موخه جوړ شوي دي نو د داسې سایټونو څخه ځان ساته اوم: مسلمانه وروره او مسلمانې خورې! نن د فتنو زمانه ده، په دې زمانه کې د ضروري شرعي علم زده کول ډیر اړین دي تر څو سړی وکولای شي حق او باطل حلال او حرام و پیژني او د باطلو تبلیغاتو تر تأثیر لاندې را نه شي.

په انټرنیټ کې ډیر ښه ګټور سایټونه شته چې ډیر مهم او ګټور معلومات خپروي او په دې برخه کې د اسلامي نړۍ علماؤ ډیر لوی خدمت کړی دی.

د انټرنیټ له لارې خلکو ستر علوم تر لاسه کړي دي او د انټرنیټ په وسیله خلکو ډیر کسان اسلام ته دعوت کړي دي او په اسلام باندې مشرف شوي دي خو دا هغه کسان دي چې د انټرنیت څخه یې صحي استفاده کړې ده.

آتم: د انټرنیټ کارولو د پاره یو مشخص وخت وټاکی نه دا چې ټول وخت پکې مشغول او مصروف شئ.

وجزاکم الله خیرا.

# د شهيد قوماندان ملا محمد رحيم خليل ژوند ته لنډه کتنه

زلمی افغان

اتل او قهرمان شهيد قوماندان ملا محمد رحيم خليل د مرحوم ملا نور محمد زوی او د شهيد حافظ عبدالعزيز زلمي مشر ورور د غزني د قره باغ ولسوالي د سرپورست کلي اصلي او سېدونکی ، له نن څخه شاوخوا ۳۵ کاله مخکې يې د کندز په اشکمش ولسوالي کې دې فاني دنيا ته سترګې وغړولې.

د اتل شهيد ملا محمد رحيم خليل ژوند واقعاً له لوړو ژورو ، خوږو او ترخو ، حماسو ، قربانيو ، سربښندونو ، فداکاريو ، اتلوليو او شهکاريو ډک او يو حماسي داستان ته ورته دی.

له کله مې چې د شهيد د شهادت خبر تر لاسه کړی او بيا په دې تکل کې شوی يم، چې د نوموړي شهيد د ژوند ، خاطرو او کارنامو په هکله لنډ معلومات را ټول او ترتاسو درنو لوستونکو در ورسوم، نو باور وکړئ، تر ډيرې مودې هېڅ د دې توان او دمه را کې نه وه، چې داسې څه وکړم، ځکه يو خو د هغه سرلوړي او اتلوال ژوند د حد اقل انځورولو او معرفي کولو لپاره الفاظ نه ول او بل دا چې د نوموړي شهادت خبر اوس هم را ته د نه منلو غوندې دی.

په هر حال ! غواړم په مختصره توګه د غازي او قهرمان شهيد خليل د ژوند د بېلابېلو پړاونو په باب ستاسو په محترم کې حضور کې لنډ معلومات وړاندې کړم.

**الف- کورنی ژوند:**

اتل شهيد قوماندان ملا محمد رحيم ، چې د جهادي فعاليت په ډګر کې يې مستعار نوم نومونه لومړی تائب، بيا عارف او د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې خليل و، په يوې داسې کورنۍ کې زېږېدلی، چې اقتصادي وضعيت يې چندان خوندور نه و؛ خو بيا هم د مرحوم پلار او کورني ديانت د تشويق او هڅونې په برکت د طفوليت له مرحلې سمدستې وروسته د علم په طلب پسې کوڅه په کوڅه ، کلي په کلي ، حجره په حجره او آن ولايت په ولايت وګرځېد.

نوموړی د ژوند تر پايه مختلو مشکلاتو ته ونه کتل، او د کشر ورور قوماندان شهيد زلمي سره يې اوږه په اوږه د جهاد ، درس او واقعي خدمت لاره ځان ته غوره کړه.

د نوموړي کشر ورور شهيد قاري عبدالعزيز زلمی هم د خپل وخت يو نامتو ، زړه ور او غښتلی مجاهد او سرګروپ و، چې د ده تر شهادت پنځه يا شپږ کاله مخکې د پياوړي قوماندان شهيد ابو منصور (هغه څوک چې تر ټولو ستره او بې

ساري کارنامه ، د ۲۳ تنو کوریایانو نېونه یې ترسره کړې وه.) تر قیادت لاندې له صلیبي یرغلګرو او د هغوی له غلامانو سره تر زیاتو جګړو او حملو وروسته د دښمن په یوه ناځوانمردانه برید کې په شهادت رسېدلی و.

**ب- زده کړې:**

شهید قوماندان خلیل لومړنۍ او ابتدایي دیني زده کړې د خپلې سیمې تر څنګ د غزني په نورو سیمو لکه شلګر او د هېواد په دوو نورو ولایتونو کندز او لغمان کې په مختلفو استادانو او علماء کرامو سرته ورسولې.

همدارنګه متوسط دیني کتابونه یې د روان مقدس جهاد د ژمنیو فرصتونو او تعطیلاتو نه په استفادې په وقفه یې شکل د هجرت په دیار کې په مختلفو استادانو لکه شیخ الحدیث مولوي عبدالروف صاحب، شهید مولوي عبدالوهاب صاحب او مولوي عبدالحبیب صاحب او همدارنګه د تجوید او قرأت نیمګړې دوره باندې وویل.

همدارنګه یې د جهادي وضعې او اوسنیو ایجاباتو ته په پام سره، د ډېرو مشکلاتو په زغملو په مختلفو سیمو کې کافي نظامي زده کړې او تجربې هم ترلاسه کړې.

د شهید خلیل د درس او حجرې ملګري نوموړی د طالبي پر مهال یو ځیرک، حیاء ناک، متقي، خادم او د استادانو نهایت زیات احترام کوونکی کس بولي.

**ج- دندې او مسؤلیتونه:**

اتل او غازي شهید خلیل که څه هم په افغانستان کې د شر او فساد د لنډغرو پر ضد د طالبانو د اسلامي تحریک د را پاڅېدلو پر مهال کشر طالب و، خو د اسلامي امارت د واکمنۍ او بیا تر سقوط پورې د امارت د یوه فداکار سپاهي په توګه په مختلفو تشکیلونو کې برخه اخیسته

**د- د اشغال پر ضد په روان مقدس جهاد کې:**

قهرمان شهید خلیل د خپل مبتکر فکر او ذکاوت په مټ او خپلو مشرانو ملګرو په مشوره او اجازه د جهاد په اوایلو کې د تعرضي، تهاجمي او کمین بریدونو پر ځای زیات تمرکز په انفجاراتو وکړ او د قره باغ ولسوالۍ په مربوطاتو، خصوصا د کابل کندهار په لویه لار یې د اشغالګرو او د هغوی د لاسپوڅو لسګونه زغروال ټانګونه، شوبلې او ټانګو د ماینونو خوراک او پکې سپاره سلګونه عسکر د جهنم کندو ته ولېږل.

د شهید خلیل مجاهدین ملګري وايي، چې نوموړي به همېشه د انفجاراتو په وخت کې د موادو د ځای پر ځای کولو او اماده کولو کار په خپله تر نظر تېراوه، ترڅو خدای مه کړه د ملګرو د متضرر کېدا او ځاني تلفاتو باعث نشي، خو ... قسمت بل ډول شو.

نوموړی د ولایت په کچه د چاودېدونکي توکو د استاد او ماهر په توګه پېژندل کېده او سلګونه مجاهدین یې روزلي. د نوموړي د همدې مهارت له کبله د مورچل مجلې د شپږم کال په دریمه ګڼه کې ورسره په دې اړوند مرکه هم ترسره شوې او پر خپل لاس د ترسره کړیو انفجاراتو زیاتره صحنې یې د الاماره جهادي ستوډیو په ۴۲ شماره اصدار کې، چې (د حماسو ډګر) نومېږي، ثبت او نشر ته سپارل شوي دي.

**و- خصوصیات، عادات او قرباني:**

شهید قوماندان ملا محمد رحیم خلیل (تقبله الله) تل د الهي فرمودې (أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ) په اساس چلند غوره کړی و. ده ته الله تعالی د نورو غوره صفاتو تر څنګ د قیادت خصوصیات ژور او عمیق فکر، پوخ تدبیر، سیاسي شعور، له ولس سره نرم چلند او نور رنګارنګ ځانګړتیاوې ورکړې وې.

هغه به تل ملگرو ته له اولس سره د نرم او ښه سلوک ، د ديني شعايرو ، مشرانو ، علماء کرامو ، سپين ږيرو او قومي مخورو ته د احترام او ارزښتونو او عرفونو ته د درناوي توصيه کوله.

همدارنگه د مجاهدينو تر منځ د نفاق ، ډله او ډلبازۍ ، غيبت ، تخريب او نورو ناوړه خصلتونو سخت مخالف او تل به يې خپل ماتحت مجاهدين له داسې کارونو منع کول.

دا چې فداکاري او له قربانۍ سره مينه د شهيد په فطرت کې اخښل شوې وه، نو د ځينو سطحي ټپونو سربېره دوه ځله د دښمن په مخامخ بريدونو او په وروستي ځل تر شهادت څلور مياشتې مخکې د ۱۳۹۳هـ.ل کال د جعلي او نمايشي انتخاباتو د دوهم پړاو په دوهمه ورځ د قهرمان شهيد فتح الله په شمول د اوو تنو قهرمانو ملگرو سره يو ځای د امريکايي بې پيلوټه الوتکو تر وحشيانه بمبار لاندې راغی، چې نور ملگري ترې شهيدان او يوازې دی په سخت ټپي حالت کې ترې ژوندی پاته شو.

زما تر سترگو اوس هم هغه شېبه گرځي، چې له دې واقعې نه وروسته به يې د دغو شهيدانو د يادولو په وخت کې سخت افسوس او ارمان کاوو او ويل به يې چې کاش ! يا ټول ټپيان شوي وای او يا ټول يو ځای شهيدان شوي وای..

ز- جهادي چارې او جهادي مسؤليت:

لکه مخکې چې مو ذکر وکړ، د اتل شهيد خليل (تقبله الله) جهادي ژوند د الله تعالی په فضل گام په گام له فتحو ، نصرتونو او لاسته راوړنو سره مل و.

په همدې اساس په تېرو څو کلونو کې د ولسوالۍ د مختلفو محترمو نظامي مسؤلينو له لورې بار بار د سرپرست نظامي مسؤل په توگه او په بيلابيلو وختونو کې د جهادي دلگيانو د مرستيالۍ دندې په کال امانت داری سرته رسولې ، چې له ښه بخته د مسؤليت پر مهال اکثره خلک ، مشران او کشران ترې خوښ او راضي وو.

**شهادت:**

د افغان خاورې دغه اتل او حماسه ساز بچی د روان ۱۳۹۳کال د ميزان د مياشتې پر ۳۰مه، چې د ۲۰۱۴م کال د اکتوبرمياشتې له ۲۴نېټې سره سمون خوري، د چارشنبې په ماښام د اتو بجو شاوخوا کې په د ځمکني ماين د خښولو پر مهال د شهادت جام نوش او د جنت په لور ابدي سفر پيل کړ.

انا لله و انا اليه راجعون

د ټولو شهيدانو روحونه دې ښاد ، لاره روښانه، لارويان ډېر او ياد تل تر تله ژوندی لري

ستا د ښايست گلونه ډېر دي
څولۍ مې تنگه زه به کوم کوم ټولومه

# د لیکوال او شاعر شهید انجنیر نذیر احمد طه ژوندلیک

محمدالله اخندزاده

ځوان او تاند شاعر او لیکوال شهید انجنیر نذیر احمد طه د ښاغلي پیرمحمد زوی او د الحاج خان محمد لمسی د نن څخه ۲۴ کاله وړاندې د غزني ولایت د قره باغ ولسوالي د چېرګو د کلي په یوه درنه کورنۍ کې دې فاني نړۍ ته سترګې وغړولې.

لومړنۍ زده کړې یې په ۱۳۷۵ هل کال د شېرخان ناشر په لمړني ښوونځي کې پیل کړې، منځنۍ زده کړې یې په ۱۳۸۲ هل د سلطان محمود غزنوي په عالي لېسه کې پیل او په ۱۳۸۷ هل د همدې لېسې څخه په عالي درجه، په داسې حال کې فارغ شو، چې ډېری وخت به په خپل ټولګي کې اول نمره وو.

نوموړی په ۱۳۸۸ هل کال د افغانستان د تخنیکي او مسلکي زده کړو انستیټوت د ساختمان څانګې ته بریالی شو او په ۱۳۹۰ هل کال کې یې د دې انستیټوت څخه په عالي درجه د فراغت سند تر لاسه کړ، چې له فارغت وروسته که څه هم د کار پراخې زمینې ورته مساعدې وې، خو بیا یې هم هڅه ونکړه، چې د غلام او اجیر حکومت تر سیوري لاندې دې په غربي مؤسساتو کې کار ترسره کړي، بلکې په رضاکارانه ډول یې د لنډې مودې لپاره د هېواد د بچیانو د ښې او سالمې روزنې په نیت د ملوک په عالي لېسه کې د ریاضیات او ساینسي مضامینو استادي وکړه.

شهید طه، چې او سنی مستعار نوم یې منیر و، له ماشومتوبه د دیانت او روحانیت په زرینه ګېڼه سنبال و. هغه به د دې ترڅنګ چې د خپل پلار او کورنۍ سره د ژوندانه د پېټي په اوچتولو کې مرسته کوله، زده کړه به یې کوله، له علماوو او مجاهدینو سره یې ټینګه راشه درشه پالله. هغه به تل د خپلو ملګرو په منځ کې د صوفي او مجاهد په نامه مشهوره و.

نوموړي شهید له عصري زده کړو سره سره د خپلو متفرقو دیني زده کړو سلسله هم روانه ساتله. د خپلې سیمې له علماء کرامو او تکړه استادانو نه یې زده کړه کوله، همدارنګه د خپلې علمي سویې د لوړولو او د علمي تندې د خړوبولو لپاره یې تل ازاده مطالعه کوله او د پښتو او فارسي ژبې زیاتره دیني، ادبي او تاریخي کتابونه یې لوستل.

شهید نذیر احمد طه د ظاهري علم ترڅنګ باطني علومو ته هم توجه کړې وه. هغه په تانده ځوانۍ کې د طریقت په سپېڅلي نقشبندیه طریقه کې خپلې سیمې له شیخ المشایخ

حضرت مولانا بشیر خلیفه صاحب نه لاسنیوی کړی و او له تحصیل سره جوخت به یې اذکار او مراقبې کولې.

که څه هم فاني ژوند زما او د شهید انجنیر صاحب د ملګرتیا مزې تر ډېرو تړلې پرېښودل ؛ خو ما له ده سره په دې موقتي ملګرتیا کې له نوموړي ډېر څه زده کړي او ډېرې خوږې خاطرې تر لاسه کړې، چې څو یې دلته ستاسو په مخکې بیانوم.

نوموړی شهید د ډېرې پراخې سینې ، حلم او متواضع شخصیت خاوند و ، تل به یې د ملګرو سره ښه چلند او په ورین تندي خدمت کاوو.

له دې سره سره چې الله تعالی پرې د عصري او دیني علومو او د ټیکنالوژۍ سره د اشنایۍ پېروزینه کړې وه؛ خو دې هرڅه د هغه خاکسار فطرت او باطني ښایست لا ځلولی و. له تکبر او متکبرو خلکو یې کرکه کوله، یوازې عصري علوم او د هغو په مټ دین او هېواد ته خدمت یې ځان غولونه بلله. ده به ویل، چې ترڅو پورې دې خپل نفس تر پښو لاندې کړی نه وي، په دیني علم سنبال شوی نه یې او د وخت له مروجه فنونو او ضرورویاتو سره اشنا نه یې؛ نو ګواکې د ټولنې د اوږې بار او تش کالبوت یې.

په معاصرو سیاسي قضایاوو کې د افغانستان اسلامي امارت او د هغه په راس کې د مدبر قاید عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد (حفظه الله) له سیاست ،تقوا ، غیرت او رهبري نه زښت زیات متاثره و او د وران او اشغال سوي افغانستان خپلواکي او د اسلامي نظام قیام یې یوازې او یوازې د هغه تر مشرتابه لاندې ممکن بلل.

هغه به د انټرنیټ ، فیسبوک او لیکنو له لارې د اسلامي امارت د دریځ ټینګه دفاع کوله او پر امارت او مجاهدینو باندې عقدمنو منتقدینو او منحرفو ځوانانو ته به یې غاښ ماتوونکي ځوابونه ویل. دا زما مبالغه نه بلکې، که هر څوک غواړي اوس یې هم په انټرنیټ کې پیدا کولای او لوستلای شي.

شهید طه د جهاد او مجاهدینو سره زښته زیاته مینه لرله، کله چې محصل و ، تل به یې نورو ناخبره ملګرو ته د مجاهدینو سره د همکارې او خواخوږې دعوت ورکاوو او خپله به هم شپه و ورځ د مجاهدینو خدمت ته حاضریده، څو چې دوه کاله مخکې له درسونو فارغ او سمدستې د خپلې سېمې د دین او هېواد ګټونکو مجاهدینو د کاروان ملګری او له دوه کلن مستقیم جهادي فعالیت وروسته(د ۱۳۹۳هـ. ش کال د میزان د میاشتې په ۳۰مه نېټه) د ماین د خښولو پر مهال له اتل او غازي شهید خلیل سره یو ځای د شهادت لوړ مقام ته ورسېد.

انا لله و انا الیه را جعون

دلته یو جالب تصادف دی، کله مې چې د نوموړي شعرونه را کتل، نو په دې بیت مې سترګې ولګیدې:

طه زه که هر څو بلې لمبې وکړم
خو خلیل ته مې ګلزار د ډېرو شپو یم

سبحان الله، حیران پاته سوم، چې دا څرنګه ممکنه ده، چې نوموړی دې شعر په ژبه د خپل دا سې شهادت پېشبیني وکړې، چې له خپل خوږ مشر او زړسواند رهبر شهید خلیل سره دې یو ځای د جنت د حورو مېلمه شي. په دې مې ایمان لا پوخ شو ، چې د شهیدانو کرامت واقعا حق دی !

شهید انجنیر طه ته له الله تعالی ډېر زیات استعداد او لوړه سویه ورکړې وه. په علمي نړۍ کې د مشغولیت سره یې د ادب د اسمان له ستورو سره هم اشنایي لرله. شعرونه یې لیکل، لیکنې او ترجمې یې کولې.

نوموړی تېر کال په دا سې حال کې، چې یو وار یې د استشهادي عملیاتو پټه اراده کړې وه، ما ته یې خپل ناچاپه ترتیب کړي اثار را کړل او راته ویل یې، چې که زه شهید شوم ، نو دا به را ته خپله یا په بل چا چاپوي.

ده یوه بشپړه شعري مجموعه ، چې (تصور کې دې تل ورم د یار تر کلي) نومېږي او دوه نورې رسالې ، چې یوه یې (صبر او د هغه مقام) او بل یې د یوه په اسلام

مشرف شوي عیسوي داستان دی، چې (له کلیسه تر مسجده) نومونه لري.

شهید طه واده نه و کړی او په کور کې یې بوره مور او سپین ږیری پلار او د قلمي او جهادي سنګر یاران یې تر شا پرېښودل.

دلته به د نوموړي د شعرونو څو نمونې ستاسو په حضور کې وړاندې کړم:

زړه مې له هجرانه خوړین سترګې له ژړا نه سرې
اوښکې مې په مخ قطار قطار راشي

مینه یعقوبې مې شوه، ړوند مې په لېمو نه کړي
بیا به څه کومه زه وخت که د دیدار راشي

خوښې د نذیراحمد سترګې د جانان ډېرې
مینه منصوري مې شوه کاشکې وخت د دار راشي

د عشق مرشد ته لاړمه په مینه یې مرید شوم
د دار په سر نخښېږم الله هو مې زمزمه ده

قلم په لاس کتاب تر څنګ توره تیره لرمه
پښتون زلمی یم د افغان د ننګ شمله لرمه

نه مې ټایي، نه سرتور سر، نه مې پتلون خوښېږي
شډل څواني، د ننګ پګړۍ، ښکلې جامه لرمه

چې نه وېرېږم، نه ډارېږم د غلیم په تهدید
زه قوي عزم ټینګ ایمان او عقیده لرمه

اوس مې عادت دی له مرګي سره تل لوبې کوم
ځان خپل هدف ته رسوم دا اراده لرمه

په ناموس ننګ په وطن جنګ کوم غورځنګ کومه
نذیر طه نذیر طه دا فیصله لرمه

### د شهید صدیق الله حقیار ژوند ته لنډه کتنه

شهید صدیق الله حقیار د شهید جلات خان زوی د بغلان ولایت د مرکزي ولسوالي او سیدونکی و نوموړی مشرانو بې اجازې نه کاوه او د شهادت شوق یې دومره و چې څو ځله یې د استشهادي عملیاتو غوښتنه کوله خو مشرانو د ده د جهادي خدمت څخه د خوښې له امله نوموړی د استشهادي عملیاتو څخه جهادي خدمت لپاره راوګرځاوه.

د غیرت ورباندې انتها وه تر دې چې له وړوکوالي څخه یې په زړه کې د جهاد او سنګر مینه وه چې بیا یې کله د ځوانۍ په لار قدم کېښود نو د جهاد هغه ساتلي ارمان ته یې پام وراړاوه او څو کاله یې د جهاد سنګر و پاله په دې لاره کې نوموړي بېحده تکالیف او ستونزې و ګاللې او خپل غیرت یې د نړۍ کفارو، مرتدینو او منافقینو ته په هر ډګر کې ښودلی وو د جهاد په ډګر کې یې د ژوندون اکثره حصه تیره کړې وه د خپلو ملګرو او جهادي مینې له امله به یې کال ۱۲ میاشتې یخنۍ او ګرمۍ لوږې او تندې سترړیاوې او شبګیرۍ او هلې ځلې تیرولې او ورسره به یې د قرآن پاک تلاوت د الله جل جلاله ذکر او دیني کتابونه لوستل او په ډېر شوق سره به یې د الله جل جلالهپه دربار کې د شهادت غوښتنه باربار کوله او د زړه تمنی یې دا وه چې په محشر کې د خپل جانان محمد صلی الله علیه وسلم مخ ته په جګه غاړه حاضر شي او دغه غوښتنه یې الله جل جلالهپه خپل دربار کې قبول او منظور و ګرځوله چې د ده د شهادت زیرې د ده یوه خوږ ملګري د شهادت نه څو ورځې وړاندې ورباندې وکړ چې په خوب کې یې د ده د شهادت مرحله لیدلې وه چې بالآخره یې د صلیبیانو او ګوډاګیانو سره په یوه جګړه کې کیوت چې جګړه د سپکو او درنو وسلو په مټ څو ساعته وغځېده او د ښمن ته د ډېرو تلفاتو اوړېدو وروسته نوموړی هم د **۱۴۳۵** هـ ق کال د روژې د میاشتې په ۲۰ چې مطابق دی د **۲۷** د چنګابښ **۱۳۹۳** هـ ش د جمعې په ورځ د شهادت لوړ مقام ته ورسید.

## شهید ملا فضل الهادي

شهید ملا فضل الهادي مشهور په (مسکین ) دملا بسم الله ځوی ، د لغمان علینګار ولسوالي د الوخیلو اوسیدونکې دتیر امارت په وخت کې د جهاد ابتداد د چهار اسیاب نه کړې وه ، په لوګر کې یې د زریدار ټانګ ورکشاپ کې د ټانکس زده کړه ترلاسه ، چې د محمد آغه ولسوالي په رومبی کرښه کې به په ډیره بهادری ټانګ چلاوه ،د کابل فتحي نه وروستو د سلمي فرقي توبچي کنډک مسول مقرر شو، بیا د تخار تر فتح پورې په ټولو جبهاتو کې شریک شوی وو ، د اشغالګرو امریکایانو راتلو نه وروسته د یو فعال چریک په حیث دمنطقي له ټولو مجاهدینو سره همکاري کوله چې دهمدغه مهم خدمت له وجې د مکاردښمن دده وجود برداشت نشو کړلای ، بالاخره یې په یو ناځوان مردانه توطیه کې د فحاش اربکي قومندان زمان او د هغه د ملګرو ملوک ، شین غرلخوا د ۲،۴،۲۰۱۴ نیټه ماسپښین مهال اربکیانو په شهادت ورساوه (انالله وانا الیه راجعون )

(ابتدایي تعلیم ) د خپل ملاامام نه شروع ، بیا د هجرت په دیار کې په دارالعلوم شیرګړهـ مردان کې خپل ورور مولوي حسام الدین صابري سره په ابتدایي تعلیم کې مشغول وو چې د طالبانو اسلامي تحریک شروع شو نور تعلیم ته الوداع الوداع وکړه په جهادي کارونو باندې مصروف شو، شهید ملا فضل الهادي مسکین تر شا پنځه اولادونه پریښي ده چې دوه هلکان او دری لورګانې پاته دي ، الله تعالی درجې لوړې او کورنی ته دې صبرجمیل اود اولادونو دې متعال رب ج پالونکی اونګهبان وګرځي ، امین

## که دیوي مېرمني داپریشن په ذریعه ماشوم پیداشې نو..

که دیوي میرمني داپریشن په ذریعه ماشوم وزیږي ، نودنفاس موده به تېروي اوکنه ؟ددې پوښتنې ځواب دادی: کـه چېري ددغې مېرمنې داپریشن څخه وروسته دنفاس په ډول وینه بهیږي [یعني لکه په عادي ډول چې دماشوم دزوکړې څخه وروسته له فرج څخه وینه خارجیږي] نو دغه میرمن به دنفاس موده تېره وي ، اودنفاس موده کمه ترعادت پوري اړه لري ، (یعني هرڅو ورځې کیدلای شې ) اولویه موده یې څلویښت شپې ده.

کمافي الطحطاوي على مراقي الفلاح ص١٤٠\ قوله: "الخارج "أي من الفرج فلو ولدت من سرتها مثلا وسال منها دم لا تكون نفساء بل هي صاحبة جرح ما لم يسل من فرجها لكن يتعلق بالولد سائر أحكام الولادة كما في الفتح

وفي تبيين الحقايق ٢٧\١ولو ولدت من سرتها لا تصير نفساء إلا إذا سال الدم من فرجها لكن تنقضي به العدة وتصير أم ولد به ويحنث في اليمين.

ومثله في النهرالفائق ١٢٠\١
وردالمحتار ٥٤٥\١ وطبع اخرى ٢٩٩\١



# په هرات کې د ۱۴ میلیونه افغانیو د غلا کیسه

ژ من- جمال

ثو ورځې مخکې به مو اوریدلي وي چې په هرات کې د شینډنډ ولسوالۍ د پوهني مدیر چا له ۱۴ میلیونه افغانیو سره یو و واژه، افغان دولت هم عجیبه کوي دستي یې پړه پر طالبانو وراچولې.

خو ماته دا خبره وروسته تر هغه ډیره په زړه پورې شوه چې له یو رسنیز ټیم سره د هرات والي ته ورغلو او همدا پوښتنه ترې وشوه او امنیه قومندان پکې را ټول کړل چې دوی هڅې پیل کړي دي، دا د وسله والو کار دی او ځلور تنه دا دغله یې وژلي دي.

ماته دا خبره ځکه عجیبه ښکاره شوه چې له رسنیو او پوهني سره خو طالبان دښمني نه لري او که بیا یې ولري دستي یې مسولیت اخلي کاري ځای ته راغلم د طالبانو اړوندې ټولې بانې مې لټې په لټ کړې خو هیڅ شی مې پکې ونه موند، ځکه راته معلومه شوه چې دا کار دوی نه دی کړی او تر ډیره ددې سړي د مرګ لامل شته پیسې او سیاسي دی.

په هرات کې شینډنډ هغه ولسوالۍ ده چې تر ډیره اسماعیل خان پلوي ورته خرپیړي خو دا چې ددې ولسوالۍ په لرو او برو کې ډیری یې پښتانه دي هلته د نفوذ لپاره ورته ډیره کمه موکه برابریږي او بله دا چې له هرې غلا څخه هغه خبر وي چا چې دې مدیر ته پیسې ورکړې دي نو معلومه خبره ده چې دولت خپل مدیر ته د ښونکو دوه میاشتنی تنخوا ورکوي دوی خبر هم دي.

په هرات کې له شوې دې خونړۍ پیښې یوه اونۍ تیریږي او دا پیښه داسې وه چې د شینډنډ د پوهنې مدیر، د ځارنې یو غړی او زوی یې د پشت شهر په نوم سیمه کې ومړبرید ګرو ۱۴ میلیونه افغانۍ چې د ښونکو د دوه میاشتو تنخواه وه هم له ځان سره یو وړه.

خو اوس پوښتنه داده چې دا پیښه څنګه وشوه؟

آیا دا یوه وسله واله غلا وه یا کنه د دولت د مخالفینو یو ډول سیاسي کړنه؟

بله یې دا چې ولې د ښونکو حقوق له شته قوانینو سره په ټکر کې د شینډنډ د ښونې مدیري له امنیتي ادارو سره له کومې همغږۍ پرته وړي؟

د پیښې په ورځ د ښونکو تنخواه د شینډنډ د پوهنې مدیر له ځان سره وړه، د شینډنډ ښونکو د دوه میاشتو تنخواه نه وه تر لاسه کړې، د ماسپښین په دوو بجو چې وسله وال ورته په کمین کې و د پشت شهر په سیمه کې یې و واژه. د ده زوی او د معارف یو غړی هم پکې و وژل شول او ۱۴ میلیونه افغانۍ هم برید ګرو یو وړې.

د هرات والي وویل چې برید کونکي طالبان و، خو طالبانو تر اوسه ددې برید د مسولیت د پر غاړه اخیستو په اړه کومه اعلامیه نه ده ورکړې.

د هرات په سویل کې تر اوسه دا ډول غلاوې نوې خبره نه ده تر دې مخکې هم ددې ولسوالۍ د معارف د څارنې مدیر وژل شوی و او څو میاشتې مخکې ستونزو ددې ولسوالۍ د نجونو ښوونځې وتړل.

د پوهنې وزارت بیا ددې پیښې په اړه ویلي دي چې په دې اړه باید پلټنې وکړي او له امنیتي ادارو یې غوښتي دي څو ددې برید کونکي و پیژني.

د هرات پولیس بیا وایي چې د ځانګړو عملیاتو په ترځ کې یې د شینډنډ د مدیر د وژنې عاملین وژلي دي.

د شینډنډ د پوهنې د مدیر د دوسیې څېړنه ښیي چې د مدیر له لوري د معاش لیږد ددې وژنې یو لامل وي.

خو د عرف او اداري قوانینو پر بنسټ آیا شونې ده د ښونکو د دوو میاشتو تنخواه داسې کس ته ورکول شي چې دی یې مسول نه وي؟

په افغانستان کې د اداري قوانینو پر بنسټ په مرکز او ولایتونو کې معاش د مالي معتمد له لوري ورکول کیږي او په هره اداره کې معتمد مستوفیت ته مسول دی او په اساسي ډول اداري ته د معاش تر رسیدو وروسته یې نوموړی مامورینو ته ورو شي.

په ډیرو ښارونو کې د دولتي کارکونکو معاش د بانک له لارې ورکول کیږي او مامورین خپل معاش له بانک څخه اخلي.

نوموړی وایي په تیرو اوو کلونو کې به د شینډنډ معاشونه د میراحمد په نوم یو کس ته چې د ولسوالۍ د عوایدو مدیر و ورکول کیدل.

نوموړی وایي په وروستۍ پیښه کې معاش میراحمد واخیست او د شینډنډ د معارف مدیر ته یې ورکړ او مدیر له همغې پرته دا معاش ولسوالۍ ته وور میراحمد اوس پولیسو نیولی دی او تر پوښتنو لاندې دی او بندي دی او تر ډیره شونې هم ده چې دی پرې خبر و.

خو قانون ته نه ژمنتیا نه یوازې دا چې ۱۴ میلیونه افغانۍ د ښونکو تنخواوې غلا شوې بلکه څو کورنۍ هم د ویر په ټغر کیناستې.

د هرات والي وایي د ښونکو معاش باید ژر تر ژره ورکول شي. نوموړی وایي د پوهنې مدیر وژل شوی دی خو تر اوسه هم دا پوښتنه نه ده ځواب شوې چې چا دا پیسې یو وړې او چیرې یې یو وړې او ولې نه نیول کیږي.

خو اوس دلته عجیبه کاته روانه ده تر ډیره د هرې کړنې مسولیت پرته له دې چې څوک یې پر غاړه واخلي پر طالبانو وراچول کیږي، زما لپاره دا کیسه ځکه جالبه ښکاره شوه چې یو لوري ته ۱۴ میلیونه افغانۍ غلو یو وړې بل لوري ته پولیس او د هرات مسولین پرته له دې چې خپله ستونزه او په دې ولایت کې تر بسو لاندې د اوبو تیرولو خبره ومنی وایي دا کار طالبانو کړی دی.

په هیواد کې شته ړندې رسنۍ په دې اړه ډیر کم څه وایي، دوی یوازې د یوې ورځې لپاره رابور غواړي خو دوی په دې نه دي پوه چې ددې خبر تر لومړۍ ورځې وروسته یې راتلونکې ورځې په اړه څېړنې مهمې دي.

راځئ نور له پلمو سره و وزو د هرڅه مسولیت په هغه ورواچوو چې په ریښتوني ډول په دې ډول کړنو کې لاس لري، دا حقایق پټونه تر ډیره د ملت په زیان ده، ملت باید باالاخره په دې پوه شي چې څه روان دي د شینډنډ هغه ښونکي چې دوه میاشتې کیږي تنخواه یې نه ده اخیستې تنخواوې غواړي دوی ته باید قناعت ورکول شي، د وژل شوي مدیر کورنۍ اوس بې سرپرسته شوې ده پولیس دې د طالبانو په نوم تر ځان خلاصونې خپله ستونزې او خپل پاتې راتګ ومني ځکه په طالبانو لاس پاکول دا دردونه ځکه نه شي دوا کولای چې طالبانو په ډیرو کمو مواردو کې هغه هم د ځینو ستونزو له امله یې ښوونځې تړلي دي ولې د ښونکي په وژنه یا ترورکې دوی کله هم لاس نه دی لرلی.

# د پاکستان د پیښور ښار په یوه ښوونځي کې د رامنځ ته شوې پیښې په اړه د اسلامي امارت دویاند څرګندونې

د پاکستان د خیبر پښتونخوا ایالت د پیښور ښار په یوه ښونځي برید شوی، د وروستیو ترلاسه شویو معلوماتو په اساس په پیښه کې تر دې مهاله د۲۰۰تنو د مرګ ژوبلې خبر ورکړل شوی چې ویل کیږي، ډیرې یې ماشومان دي.

د افغانستان اسلامي امارت په یاده پیښه خپله خواشیني څرګندوي او په پیښه کې د وژل شویو ماشومانوله کورنیو سره خپله غمشریکي ښيي.

دبې ګناه خلګو ، ښځو او ماشومانو قصدي وژل د اسلامي اصولو خلاف دی،اودا اصل باید هر مسلمان تنظیم او حکومت په نظر کې ولري.

دا فغانستان اسلامي امارت همیشه په خپل وخت دبي ګناه خلګو او ماشومانو وژنه محکومه کړې، څه موده وړاندې هم دپکتیکا ولایت په یحی خیلو ولسوالي کې دلوبې په یوه میدان او په ننګرهارولایت کې یې په یوه مسجدکې د چاودنو په اړه د خواشینۍ پیغام صادر کړی وو او هغه کارونه یې د اسلامي معیارونو خلاف بللي وو.

ذبیح الله مجاهد د اسلامی امارت ویاند

۱۴۳۶/۲/۲۴هـ ق

۱۳۹۳/۹/۲۵هـ ش ـ ۲۰۱۴/۱۲/۱۲م

# دجدي دشپږمې په اړه، دافغانستان داسلامي امارت اعلاميه

پنځه ديرش کاله وړاندې د ۱۳۵۸ ل کال دجدي په شپږمه نيته دپخواني شوروي سرولښکرو دخپلې پليدي کمونيستي نظريې دپلي کولو اودنړۍ خور ښکيلاکي پلان دپراختيا په نيت دافغانستان په پاک حريم يرغل راووړ.

سرو لښکرو ، ديولک لس زره پوځيانو په شتون ، لس کاله دافغان مظلوم ولس په خلاف وجنګيدل ، زمونږ يونيم ميلون مسلمان هيوادوال يې شهيدان ، دری ميلونه يې معيوب ، اوله پنځوميلونوزيات يې هجرت او کډوالی ته اړويستل.

افغان ميړني ولس ، داستکبارله لاسه دغه ټول کړاوونه ، اوږده ناورينونه اوقرباني تحمل او وزغمل‌ې ، خوله خپلې برحقي داعيي اوپاک عزم څخه يوه لويشت هم وروسته او شاته نشول.

هماغه وو چې الله تعالی ، دمتحد افغان ولس دتورې اومتين عزم په نتيجه کې نه داچې دشوروي وحشي ځواک مات او دزرګونو عسکرو په وژل کيدو يې دافغانستان خاوره پرېښوده، بلکې دافغان جهاد په برکت دټول شوروي اتحاد امپراطوري هم محوه اونابوده وګرځيده ، په هغه برسيره يې ټوله نړۍ له شر څخه خلاصه اوازاده شوه.

اوس چې دپخواني شوروي دکرغېړنو لښکرو له شکست اوګونډه کيدو څخه ۳۵ کاله تيرېږي، دافغانستان خاوره اومسلمان ولس ديوبل جهان خور استکبار ( امريکا ) ترناروا اومکار يرغل اووحشت لاندې شپې اوورځې تيروي.

امريکا اومتحدينو يې دنيږدې ۱۴ کلونو په ترڅ کې ديونيم لک مجهزو عسکرواوپرمختللې جنګي ټکنالوژۍ دهرډول وحشت په کارولو اود څه باندې يوټريليون ډالروپه مصرفولو خپل ټول زور وواهه ، ترڅو دافغان ولس ديني غرور اوبه اودخپلواکۍ ګټلوله داعيې څخه يې واړوي.

الله تعالی، دافغانستان داسلامي امارت ترنجات ښونکي سيوري اوقيادت لاندې دافغان ننګيالي ولس په جهادي مټو کې دومره قوت او هيبت واچاوه، چې دامريکا او ۴۹ اشرباټو هيوادونو ، قووتونه او طلسمونه يې رسوا اوله شکست سره مخ کړل، خبره اوس دې سرحدته ورسيده چې امريکايان په يولوريز ډول د جګړې د پای ته رسيدو خبره کوي او ډيری ځواکونه يې په ټيټ سر له افغانستان څخه د تيښتې په حال کې دي.

ورسره يې د ۴ لکه اجيرجنګي ځواک، چمتوالی هم داسې له صفر سره ضرب ده چې دکابل اداره په ډاګه امريکايانو ته وايي، چې که تاسې له افغانستان څخه ټول ځواکونه باسئ او موږ تنها پريږدئ، نو افغانستان زمونږ له لاسه تلونکی او وتونکی دی.

دافغانستان اسلامي امارت په داسې حال کې چې دجدي دشپږمې يرغل دافغانستان دټولو بدبختيو مهم عامل بولي اوپه عاملينو اوملاتړويې نفرين استوي، ورسره يوځای امريکايانو اود هغوئ ملاتړو ته هم په ورته برخليک د اخته کيدو خبرداری ورکوي.

دافغانستان داسلامي امارت

۱۴۳۶/۳/۴ هـ ق

۱۳۹۳/۱۰/۵ هـ ش ـ ۲۰۱۴/۱۲/۲۶ م

# يوځل دې اعتراف وکړو او بيا انکار ؟

## د افغانستان د انارشيزم په درشل کې

قاري احمد خراساني

د الله تعالى هزار هزار شکر دی، چې په يوه پيړۍ کې د رېم سپر طاقت امريکا، ناټو سره له نورو متحد هيوادونو، د انګريزانو او روسانو په څېر، د افغانانو د مسلسل دياړلس کلن جهاد، قربانيو، شهادتونو، زخمونو او بندونو په پايله کې د الله تعالى په خصوصي نصرت يو پر بل پسې شکست وخوړ، او دا دی، اوس مغروري کړې امريکا هم خپل جنګي پلان ته د پای ټکی کېښود، يوازې محدود فوځ يې د افغان اردو د تربيې او مراقبت لپاره پرېښود. دا خو د خوشحالي او زېرې ځای دی، چې زموږ ستر دښمن امريکا شکست وخوړ او د دوی صليبي جګړه له ماتې سره مخ شوه، خو د تشويش وړ خبره دا ده، چې ګوډاګۍ حکومت چې له يو لوري ډېر کمزوری او له اختلاف او اختناس څخه ډک حکومت دی، په مياشتو مياشتو کې د وزيرانو په انتخاب نه جوړيږي، او دوی د متفرق سوچ، فکر، عقيدو، ګټو او نفوذ څښتنان دي، امريکا وچ په زور په يو ځای را ټول کړي دي، چې خپل مشترک دښمن طالبان له منځه يوسي، خو هغه محور يا هغه کړۍ، چې دوی پرې را ټول شوي دي، هغه د الله تعالى په فضل سره د طالبانو په سربښندونکو قربانيو ماته شوه، نو دوی به بيرته د کل شيئ يرجع الى اصله مصداق وګرځي، د رباني د لومړۍ دورې په څېر به افغانستان د انارشيزم او ګډوډيزم په درشل ودريږي، ګډوډي به زياته شي، هره ډله او هر تنظيم به خودمختاره شي، قومندانيزم او پاټک سالاريزم به بيا را منځته شي، دولتي ودانۍ او شتمنۍ به شخصي ملکيت وګرځول شوي، د تير په څېر به د افغانانو وژنه او زورونه يو ځل بيا زور ونيسي. ملکيتونه او دولتونه به چور شي او يوه نه جبيره کيدونکې فاجعه به را منځته شي. لکه څرنګه چې روسانو له خپلې تيښتې څخه وروسته بيا هم د جګړې اور د کلونو کلونو لپاره بل وساتل، همداسي امريکا او متحدين يې هم غواړي چې افغانان يو ځل بيا د کورني جنګ په اور کې لولپه کړي.چې د همدې توطيو او د سيسو لومړۍ لړۍ د اربکيزم او د سکيورټي ګارډ مليشو په نوم اوس مهال روانه ده. همداسي ځيني بهرني هيوادونه هم نه غواړي چې په افغانستان کې يو پياوړی او مستحکم حکومت را منځته شي، نو جوړيدو په ځای د ورانيدو هڅې کيږي.

هغه افغانان چې د افغانستان وضع له نژدې څخه څاري، د روسانو او کمونستانو او مجاهدينو د وخت تجربې ورسره دي، داسي فکر کوي، چې بايد افغانان له خپلو شخصي، تنظيمي، قومي، ژبني او ذاتي ګټو څخه تير شي، د امريکايانو له وتو څخه وروسته دوی په افغانستان کې له سمت پالنې، قوم پالنې او ډلې پالنې څخه پرته يو اسلامي پياوړي حکومت را منځته کړي، تر څو د يتيمانو، کونډو او ښکې پاکې او د لکونو شهيدانو او مسلمانانو ارمان پوره شي، له پنځه ديرش کلونو څخه دربدر مهاجرين خپل هيواد ته ستانه شي، د افغانانو دين، مال او عزت خوندي شي او له موجوده حکومت څخه غوښتنه کوي، چې د داکتر نجيب په څېر ملت او ځان نور له

ستونزو سره مخ نه کړي، له تیر تاریخ نه عبرت واخلي د امریکایانو په خیر خپله ماتې ومني، له ځان غوښتني څخه تیر شي، له اسلامي امارت سره روان کړکیچ د جنګ په ځای د مذاکراتو او خبرو اترو په ذریعه ختم کړي، که چیرته خدای مکړه جنګ دوام ومومي، نو نوري بلاګاني به وزیږوي، نور کړکیچونه به رامنځته شي، همداسي باید اسلامي امارت هم د زهرو په ځای له ګوړې څخه کار واخلي د رسول الله صلی الله علیه وسلم سیرت را ژوندی کړي، د فتح مکې په خیر د غچ اخستني پر ځای د عفوي لمن وغوړوي، د تیزي په ځای له نرمي او د افراط او تفریط پر ځای له اعتدال څخه کار واخلي، تر څو د روان او تیر جهاد له برياوو او ثمراتو څخه ټول افغانان ګټه پورته کړي، خپل جهادي برم په ځای وساتي، جنګ ګټل آسان، خو ساتل او مرام ته رسیدل ګران وي، او په افغانستان کې یو داسي حکومت را منځته شي، چې په نړیواله توګه دا خپل ویاړ او افتخار وګڼي چې افغانانو د الله تعالی په نصرت په یوه پیړۍ کې درې نړیوال ځواکونه را پرځولي دي.

افغانستان مقبرة الامبراطوريات: الانسحاب مها انكسار، والبقاء فيها انتحار
مائها وشل، ثمرها دقل، لصها بطل، ان قل الجيش ضاعوا، وان كثروا جاعو

## دغه خواږه مو له شکر څخه ژغوري

نوی څېړنه چې په یوې امریکایي جریده کې خپره شوې ښيي چې د ماسته استعمال په انسان کې د دوهم ډول شکر ناروغۍ خطر ۱۸٪ کموي.

دیابیت یو ډول میکروب دی چې د انسان په بدن کې د قندي موادو اندازه زیاتوي او انسان په شکر اخته کوي. په نړۍ کې ۹۰ سلنه خلک د دیابیت په دوهم ډول اخته دي.

انسان هغه مهال د دیابیت په دوهم ډول اخته کیږي چې بدن یي انسولین (Insulin) تولید نکړي. هغه کسان چې په دغه ډول دیابیت اخته وي په هغوي کې د زړه حمله او نور ناروغیو خطر زیاتیږي.

دغه څېړنه کې څېړونکو ۲۰۰۰۰ نارینه او ښځې وڅیړل د کوم عمر چې د ۲۵ او ۷۵ کلونو تر منځ وو. څېړونکو د ۳۰ کلونو په موده کې له دغو خلکو سره خبرې وکړې او د هغوي روغتیا او د هغوي پرهیز په اړه پوښتنې وکړې.

د انسان نور عادتونه لکه بدني روغتیا، سګریټ او ذهني فشار په نظر کې نیولو سره د ماسته ورځنی استعمال سره د انسان په دیابیت دوه ډول اخته کیدو خطر ۱۸ سلنه کمیږي.

دغه څېړنه ښيي چې ۲۸ ګرامه ماسته له ورځنی استعمال سره په انسان کې د دیابیت دوهم ډول ناروغۍ خطر ۱۸ سلنه کمیږي.

له دې مخکې څېړنې ښودلې وه چې د کلسیم، مګنیزیم او ځینې نور غذایي مواد له استعمال سره د دوهم ډول دیابیت خطر کمیږي. دغه څېړنه ښيي چې په ماسته کې یو ډول باکتریا وجود لري کوم چې د دیابیت خطر کموي.

# د لویدیز کلتوري هڅو ته یوه لنډه کتنه

لیکوال : عبدالغفار غریب

ښکاره ده چې نظامي یرغلونه خورا زیات لګښت او درانه ځاني تلفات غواړي او پرته له هغو قومونو چې لوی اقتصادي او نظامي ځواک او ځپاندې عقیدوي او کلتوري تلوسې لري ، بل څوک دغه شان خوځښتونو ته زړه نه شي ښه کولای . زموږ پر هېواد د لویدیزوالو یرغل هم نه یوازې دا چې تر شا سترې اقتصادي موخې لري ، بشپړ فکري او کلتوري مقصدونه یې هم پکې دي . تر دې چې د یو اټکل له مخې ویل کیږي چې د یرغلګرو نظامي او جنګي لګښتونه ښایي له کلتوري او ثقافتي هغو که لږ څه کم وي . راځئ د لویدیزوالو دغو هڅو ته په ډېره لنډه توګه یوه کتنه وکړو .

۱ – ټي وي چینلونه او راډیو ګانې : زموږ په هېواد کې د بهرنیانو له راتګ فوراً وروسته د ټي وي چینلونو شمېره تر پنځوسو او د راډیویي مرکزونو تر سلو واوښته ، چې یقیناً د هېواد له نفوس ، اقتصادي بنسټ او طبیعي پرمختګ سره هیڅ سمون نه لري . په دې معنا چې دغه خپروني او مرکزونه یې د افغان ولس د اړتیا له مخې نه بلکې د بهرنیانو د ضرورت او تبلیغاتي پروګرام د تکمیل لپاره ایجاد شول . په دغو کې یو شمېر خو هغه دي چې نیغ په نیغه د بهرنیانو خپل ملکیت دي لکه : بي بي سي ، ازادي ، امریکا غږ ، اشنا ، مشال ، ډیوه ، المان غږ او داسې نور ... چې شپه ورځ یې یوه کړې او زموږ د هېوادوالو فکري انحراف ته یې ملا تړلې . خو ځینې یې بیا ظاهراً خپله د افغانانو دي البته د تمویل اداري یې بیا هم د لویدیز هغه خطرناکې استخباراتي اداري دي چې د خیر ښې ګڼې مؤسسات یې بولي او له همدې لارې د نوموړو رسنیو ګرد سره خپروني کنټرولېدلای شي .

۲ – ورځپاڼې او مجلې : دا برخه هم هماغسې وګڼئ ، د هېواد له اړتیا پورته په سلګونو مجلې او ورځپاڼې چې ټولې زموږ ولس ته غربي ارزښتونه تشریح کوي او د خپل ملت له ستونزو ، نیمګړتیاوو او ضرورتونو سره یې هیڅ کار او غرض نشته . په دغو کې مطلقاً داسې مضامین خپریږي چې افغاني ټولنه ترې شرمیږي .

۳ – ښوونیز فعالیتونه : لکه امریکایي پوهنتون ، فهیم قسیم پوهنتون او د هېواد په لروبر کې د شخصي ملکیت تر نامه لاندې په لسګونو د ژورنالیزم ، هنر او حقوقو پوهنځي چې له یوې مخې د لویدیزو دیموکراتیکو ارزښتونو په خپراوي لګیا دي او زموږ په زرهاوو ځوانان او جینکۍ یې د روزنې لاندې نیولې . همدارنګه په زرهاوو شخصي ښوونځي چې له یو کم شمېر پرته زیاتره یې په لویدیز موډ او هوډ چلیږي . او دا ځکه چې له دې ټولو سره همدغه لویدیزې اړونده اداري مالي او مشورتي مرستې کوي . پر دې سربېره د پوځ او پولیسو روزنیز ښوونځي او لویو ښارو کې منظمې اکاډیمۍ خو هسې هم د بهرنیانو دي . دغو کې خوله سره د افغاني کلتور درک هم نه لګیږي . له دې سره سره ټولو

افغان تعليمي ادارو ته درسي نصاب چمتو كول هم د بهرنيانو په لاس كې دي . ځكه چې د كتابونو او درسي موادو پوره كولو كې مالي مرستې كوي نو حتمي ده چې په دغو كې به زياتره داسې مضامين ځاى شوي وي چې دوى يې غواړي .

۴ – كورسونه او سيمينارونه : دالا يو بل ډگر دى چې غربيان د خپلو فكري ارمانو د خپراوي لپاره كار ترې اخلي . د هېواد لويو ښارو كې دا پروگرامونه زښته ډېر چليږي . خو دا كورسونه د انجينرۍ ، روغتيا او صنعت په هكله نه وي بلكې زياتره يې د ښځو پر خلاف د تاوتريخوالي ختمولو ، بشري حقونو او ديموكراتيكو ارزښتونو د خپراوي لپاره وي . لويديزې ادارې په دې برخه كې هم غټه پانگونه كوي .

۵ – سياسي او مدني ټولنې : غربيان له سياسي پارټيو او مدني ټولنو هم د خپلو فكري او كلتوري موخو لپاره كار اخلي . له بهرني يرغل نه وروسته په سلگونو سياسي ډلې او مدني ټولنې منځ ته راغلې چې له ډېرو كمو پرته مطلق اكثريت يې له غربي استخباراتو او نورو مؤسساتو پيسې او مشورې تر لاسه كوي او د هماغه لويديز كلتور خدمت ته يې ځانونه وقف كړي دي . لويديزوال له همدې لارې د هېواد په شوراگانو ، جرگو او نورو تقنيني ادراو كې خپل ملگري او خواخوږي ورننباسي او په دې ډول حكومت كې واكمني تر لاسه كوي .

٦ – ښځه او د ښځو حقوق : دا نو د غربيانو د فعاليت ډېر لوى ډگر دى چې عملاً يې زمونږ په هېواد كې يو شمېر ښاري خلك نارينه او ښځينه سخت غولولي او خپلو شيطاني لومو كې نښلولي دي . دوى په دې لړ كې بې دركه ډېر لگښتونه كوي . رسنۍ په دې موضوع لگيا دي ، كورسونه او سيمينارونه ، فلمونه او ډرامې او په لسگون روزنتونونه گرد سره د افغان ښځو د بې لارې كولو په مقصد لگيا دي هلې ځلې كوي . په دې لړ كې ځانگړې محكمې ، ولايت په ولايت او ځينو ولسواليو كې د ښځو لپاره «امن كورونه» ، تفريحي پاركونه او رانگارنگ پروگرامونه روان دي . د هېواد په لروبر او كلي په كلي د بېلا بېلو مؤسسو له خوا ښځوته په يو او بل نوم د ځه نا ځه معاش برابرولو امكانات او د ښځو پر خلاف تاوتريخوالي ختمولو تر نامه لاندې د هغوى داسې روزل چې د افغانانو ديني ، ټولنيز او كلتوري بنديزونه مات او بالآخره د اسلامي حيا او حجاب گرد سره دېوالونه ونړوي ، كورنى سيستم له منځ يوسي او د لندن او پاريس د ښځو په بڼه راڅرگندې شي . د لويديز دغه كلتوري هڅې يقيناً ډېرې خطرناكې دي . ځكه افغان ولس سره له دې چې د خپل اقتصادي حالت د اغېز له امله ډېر پاك زړى او حياناك ولس دى خو دا چې د تعليم كچه يې خورا زياته ټيټه او ديندار شخصيتونه يې هم له نړيوال چل ، فريب او دسيسو سره نابلده دي نو ځكه د بهرنيانو دغو كلتوي هڅو اغيز پرې كړى . تر دې چې اوس زمونږ هغه يو شمېر خلك چې قطعاً له يادو ادارو سره اړيكې نه لري هم په جامه او ناسته ولاړه كې د غربيانو پيښې كوي . د مثال په ډول پخوابه كه چا ږيره خرېيله نو بريت خو به يې خامخا پرېښودل تر دې چې خلقيانو او پرچميانو هم غټ غټ بريتونه ساتل . خو اوس وينو چې غټ شمېر خلكو ږيره او بريت دواړه خرېيلي او ځان يې د پرنگيانو په بڼه جوړ كړى وي . په دې اساس زمونږ ديني علماء ، ټول اسلامي تنظيمونه او فرهنگي ادارې مسؤليت لري چې دغه كلتوري هڅې بې اغېزې او بې ارزښته ونه گڼي . دا يقيناً له ډېرو بمباريو ، غټو لښكرو او سترو پوځي اډو زيات ضرر او خطر لري . د اسلامي تحريك ټول خواخوږي بايد په دې هكله منظم كار او هڅه هاند وكړي او تر خپله وسه ټولو يادو ادارو او مركزونو كې د دننه د خپل بشپړ ديني قوي استدلال پر مټ هېوادوال د بهرنيانو د دغو كلتوري فعاليتونو له خطره په ښه ډول خبر كړي . مطلب دا چې د باروتو پر ځاى دغو بنسټونو او ټولنو ته ديني افكار ورننه وېستل شي او تر ممكنه حده د اسلام د خپراوي كار ترې واخيستل شي .

# د ترنم د ګلبڼ د وه ستي بلبلان

**شهید ضیاء الحق حبیبي**

دا ۱۳۷۴هـ ش کال دی، د توتو د پخنتن موسم دی،په افغانستان کې د دارالحفاظونو، مدرسو او لیسو تمویلونکي کویتي مؤسسې لجنة الدعوة الاسلامیه د خپلو اړوندو مدارسو د شاګردانو کلنی سیمینار په غزني ښار کې جوړ کړی دی،سیمینار ته زه هم د ګردیز د بلال بن رباح رضی الله عنه له دارلحفاظه ورغلی وم، سیمینار اونیز و، چې د غزني، پکتیکا، پکتیا، کابل او وردګو څخه په کې سلګونو طالبانو او حافظانو شرکت کړی و.

په همدې سیمنار کې مې ضیاء الحق وپیژاند،په عمر به تقریبا ۱۱ کلن او زما همځولی و،ضیاء الحق د وردګو د سیداباد اوسیدونکی و، خو دا مهال یې په ښرنه کې د جعفربن ابي طالب رضی الله عنه په دارلحفاظ کې دقرانکریم حفظ کاوو،ضیاء الحق ځیرک، بیدار او تاند هلک و، چې د قرآن کریم په حفظ کې له نورو مخکې و، له همځولي ضیاء الحق سره په یوه اونۍ کې د ملګرتیا تر حده شناخته شوم،دوه کاله وروسته نوموړی په ګردیز کې د قرانکریم له حفظ نه فارغ او دخپلو ملګرو په منځ کې یې چې ټول تر ده مشران و اول نمبر وګاټه .

حافظ ضیاء الحق د قرانکریم له حفظ وروسته دیني زده کړو ته دوام ورکړ، خو لا یې سرته نه وې رسولې چې امریکایانو په افغانستان برید وکړ،ضیاء الحق هم د خپلو نورو ملګرو په شان په جهاد لاس پورې کړ او له مسلح جهاد سره سره یې د حماسي ترانو او نظمونو ویل هم پیل کړل .

قاری ضیاء الحق چې دغه مهال په حبیبي سره مشهور و، په خپل خواږه غږ یې د ترنم په نړۍ کې پوخ ځای خپل کړ، د نوموړي د غږ ځانګړی انداز، د جالبو طرزونو د جوړولو استعداد او له فرهنګي جهاد سره سره د عملي جهاد لاره پالل هغه څه و چې نوموړي ته یې ځانګړی امتیاز بابښه .

ضیاء الحق حبیبي په جلسو ، دیني غونډواو مجالسو کې اشعار زمزمه کول، دغه راز یې په جهادي ویډیوګانو او کیسټو کې هم اشعار ثبتول او نشرول او په دې ډول یې د ترنم د مینه والو ذوقونه خړوب ساتل .

ضیاء الحق خپله هم حماسي اشعار لیکل چې په مجلو او جهادي سایټونو کې نشریدل د نوموړي د شعر یوه بیلګه په لاندې ډول ده .

د پردیو غرور مات شو

ګیر له هرې خوانه دنـــړۍ یاغي اورپـــکې دي

تښتي به په کومه د وتـــو لارې ترې ورکـې دي

هغه زوروړهغه مغـــرور او کبرجن لښـــکر

مات شوپه گونډوشولـــواولاهم زاره ترکـــې دي

هغه پرمخ تللی وسـایل یې بې معــنی دي نـــن

ښکاري چې ناکام یې بې پیلوټې هم چــورلکې دي

داوطن شخ بريتي اوباتـــور باتور زلـمي لــــري

ځکــه دپردیوله دې خاورې نه پښې سپـــکې دي

دلته غـرو رغوکې دشاهــين دحملو ښـکاردي نن

ويستي يې له دې توروکارغــــــانونـه بڼکې دي

ښکاري چې په زغــــــرو اوبمونو طيارونه شوه

ځکه يې دسولې هــلې ځلـې نــــن چټکې دي

دلته کوم پـردي چې «حبيبي » په زور راغلي دي

غرونــــه اودرې یې په کـــــکروباندې ډکـې دي

ضياء الحق حبيبي په ۱۳۶۳/۹/۱۱ هجري لمريزه د وردگو ولايت د سيداباد ولسوالی د منگليو په کـلي کې پـه يـوه ديـنداره او جهاد پروره کورنی کې وزيږېد، په ناظره قران کريم يې له خپـل بابـا څخـه ولوست او لومړني ديني او عصري زده کړې يې د کلي د مسجد له ملا امام څخه ترلاسه کړې، د نهه کلنی په عمر له خپلې سيمې مسافر او د پکتيکا ولايت په مرکز ښرنه کې د جعفر بن ابي طالب رضی الله عنه په نامه دارلحفاظ کې يې د قرانکريم حفظ پيل کړ، د څـو کلونـو پـه ترڅ کې يې قرانکريم مکمل حفظ کړ او په لومړی درجه فراغـت سره يې د فضيلت دستار پـه سر وتـاړه ،د قرانکـريم د حـفظ لـه تکميـل وروسـته يې د وردگـو ولايـت د چـک ولسـوالی پـه مشـهوره دينـي درسگاه شهادت مدرسه کې زده کړې پيل کړې ترڅو چې په ۱۳۸۳هـ ش کال کې د همدې مدرسې له ۱۲ ټولگي فارغ او سند يې ترلاسه کړ.

همدغه مهال چې دهيواد په لراوبـر کـې د يرغلگـرو پـه خـلاف جهاد د عروج په حالت کې و، قاري حبيبي هـم د جهـاد تاپيـا وکـړه ،نوموړی به نيم کال په وطن کې په جهادي هلو ځلـو بوخـت و، او نيم کال يې ديني درسونه تکميلول دغه راز يې د شـعر او تـرنم پـه وسيله لساني جهاد ته هم ادامه ورکوله .

قاري حبيبي په ديني زده کړو سربيره د کمپيوترزده کړې ته هم ملاوتړلـه ، تـر دې چـې تـر کـافي حـده پـه کمپيـوتر خصوصـا ويډيوجوړولو په فن کې ماهر شو،چې د منبـع الجهـاد سټوډيو لـه تخنيکي برخې سره يې د توان په اندازه همکاري هم کوله.

قاري ضياء الحق حبيبي پـه ۱۳۸۹ هــ ش کـال کـې د پيښـور د اضاخيلو کمپ په عبدالله بـن مسـعود رضی الله عنـه مدرسـه کـې دديني له علومو لـه زده کـړې فـارغ او د فضيلت دسـتار يـې پـه سر کړ،نوموړي لـه دينـي علومـو لـه فراغـت وروسـته مقـدس جهـاد او حماسي ترانه خـوانی تـه ادامـه ورکـړه،د ميدان وردگـو ولايـت پـه سيداباد ولسوالی کې نومـوړي پـه ډيـرو جگـړو کـې شرکـت وکـړ او دښمن ته په درانه زيان اړولو سربيره خپله هم څـو ځلـه لـه سـختو مشکلاتو او خطراتو سره مخامخ شو.

نوموړی چې ددښمن تر سخت ځـار لانـدې و، پـه ۱۳۹۳/۲/۳۰ هجري لمريز کال د سه شنبې پـه ورځ د خپـل بـل همسـنگر شـهيد ضـياولي منصـور سره يوځـای د مـازديگر پـه ۴بجـو او۵۳ دقيقـو د وردگو ولايـت د جغتـو ولسـوالی اړونـد د بلنـدخيلو پـه کـلي کـې د وحشي يرغلگرو د ډرون بې پيلوټه الوتکوله لوري په نښه شـو او پـه ډېره بېرحمی سره په شهادت ورسيد او د شهادت شـيرين جـام يـې وڅښلو. ښاغلي حافظ مولوي ضياالحق حبيبي د ۳۰ کلونو په عمر دې فاني نړۍ ته وداع وويله او رښتيني نړۍ ته يې خپله کډه يـووړه. انـا لله و انا اليه راجعون.

د يادونې وړ ده چې ښاغلي شهيد حبيبي په ۱۳۸۷ هجري لمريز کال کې واده کړی و چې له شهيد څخه ۳ لورانې پاتي دي.

په دې توگه د سيداباد په تړو او جلگو کـې هغـه غـږ خـاموش شو چې يوه لسيزه يې د ترنم تږې زړونه په خپل جاودگر غږ سـيرابه ساتلي و، هو کې د ترنم د بڼ خوږژبی بلبل ضـياء الحـق حبيبـي لاړ خو يادونه او خـوږې آزانگـې بـه يـې تـل د مينـه والـو پـه زړونـو او ذوقونو کې پاته وي.

انعام الله انعام د ترنم د گلبڼ تنکی شهيد

غالبا ۲۰۰۶م کال و، دقبايلي سيمې زرگري پـه جامعـه العلـوم الاسلاميه مدرسه کې پرتمينـه غونـډه جـوړه وه، سـلگونه فاضـلانو

پګړۍ تړلې،او د جهادي بهیر وتلیو شاعرانو په کې ترانې او نعتونه زمزمه کول، ناڅاپه یو دلسو یا یوولس کلونو په عمر ماشوم سټیج ته د نعت ویلو لپاره راوغوښتل شو، حاضرینو ورته په حیرانۍ کتل او له نوموړي یې د کوم په زړه پورې ترانې اوریدلې تمه نه وه،خو ماشوم په ډیر جرأت ترانه پیل کړه،د ترانې آهنګ،الفاظ او د ویلو انداز یې دومره زړه وړونکی و، چې حاضرین یې په حیرت کې واچول،ماشوم نعت خوان په خواږه اندازه ترانه پای ته ورسوله او کله چې د غونډې انانسر وتلی شاعر سیف مومند سټیج ته ودرید، نو یې له مننې وړاندې وویل : روپۍ وړه وه خو په تول پوره وه .

دا ماشوم نعت خوان انعام الله انعام و، دکابل د ده سبز اوسیدونکی ، چې له پیښور څخه دې جلسې ته راغلی و،دامریکا په ضد په روان نشراتي جهاد کې ډیر نعت خوانان، شاعران، لیکوالان او نطاقان ګډونوال دي، خو انعام الله شاید د جهاد ددې بخش تر ټولو کم عمره مجاهد وي، چې تر لس کلن کیدو وړاندې یې د جهادي ادب او ترنم په ډګر کې شهرت موندلی و.

په ډیر تأسف باید ووایو چې انعام الله انعام د ترنم د ګلبڼ هغه بلبل و، چې لا یې په نغمو او ترانو زړه نه و یخ کړی، چې دشهادت د قافلې ملګری شو، راځئ یوه شیبه ددغه ماشوم شهید ترانه خوان لنډ ژوندلیک سره ولولو، چې د نوموړي د ورور ښاغلي عرفان الله عرفاني صاحب لخوا رالیږل شوی دی .

شهیدانعام الله انعام پر ( ۱۳۷۴ ل) کال دکابل ولایت دده سبز ولسوالۍ دده سبزخاص په کلي کې په یوه علمي اوجهادي کورنۍ کې‌دنیاته سترګې وغړولې ،دامریکادیرغل سره سم یې کورنۍ ګاونډي هېواد پاکستان ته هجرت وکړ لومړنۍ دیني زده کړې یې دخپلې مور نه ترسره کړي اوترڅنګ یې ترشپږم ټولګي پورې مکتب او په کورسونوکې دعربي اوانګلیسي ژبې اودکمپیټر زده کړه کوله اوپه شپږم ټولګي کې یې مکتب پریښود اوپه ، جامعه عالیه دارالنجات مدرسه ،کې یې درسونه پیل کړل ،

شهید انعام الله انعام دټینګ عزم ، سپځلي احساس ، غښتلي استعداد، عاطفي او دښواخلا قو څښتن، مؤدب، ځیرک انسان وه، له ماشوم تو به یې دجهادي اوانقلابي ترانوسره مینه وه دینځه کلو په عمر کې به یې له ده نه مشر ورور فیضاني سره ترانې زمزمه کولې دهجرت دیار شمشتوکیمپ کې به دجمعې په شپه په مسجدونوکې دانجمن اصلاح البیان پرګرامونه منعقد کېدل، اوانعام به یې په ډیره مینه دعوت کاوه اوده به په خپل خوږ غږ نعتونه اوترانې زمزمه کولې چې دکیمپ اوسیدونکو یې له غږ سره ځانګړې دلچسپي درلوده همداشان به یې په مکتب کې دترانو دګروپ په بدرګه ترانې زمزمه کولې دوخت په تیریدوسره یې په شاووخواسیمه کې ډیرشهرت اومحبو بیت پیداکړ

شهید انعام څه کم درې سوه حمدونه نعتونه اوجهادي ترانې په عجیب انداز او په ښکلوکمپوزونو ویلي دي چې دنشرشویو مشهورو البمونو نومونه یې په دې ډول دي

دبلبل فریاد، دمظلوم اوښکې ، تررمې په ختمېدودي ، دمړواوښکوباران ، حبیبه نازنینه ، وران کلی ، دجدایي پرهر، دخزان بادونه ، مؤمنې پرګنې ،ګلورینه مدینه ، دپاڅون پیغام ، ،دابابیلولښکر، حماسې غلبلې،

نوموړي دافغانستان داسلامي امارت د ډیرو شاعرانو شعرونه ویلي چې له دې جملې هریو شهید مولوي سمیع الله ایوبي ، شهید سیدولي سنګري ، مولوي عبدالدیان تکل ، قاري عبدالستارسعید ، اکرام الدین مفتون ، مولوي عرفان الله عرفاني ، مولوي رضوان الله فیضاني ، اوداسې نور د یاد وړ دي.

خودتقدیرفیصله وه چې په ۱۳۸۸کال دعقرب په۱۱ نیټه دشمشتو په کیمپ فوج چاپه واچوله چې په وړاندې یې د انعام الله په شمول د کیمپ ماشومانو په ډېرو جنګ پیل کړ،پوځیانو په همدې ماشومانو ډزې وکړې چې په نتیجه کې یې د نورو ماشومانو ترڅنګ انعام الله انعام هم په مرمیو ولګید او دشهادت جام یې نوش کړ

روح دې ښاداویاد دې تل وي




که څه هم نظامي چارې خپل اساسات لري او موږ په دې هکله څه ډېر معلومات او تخصص نه لرو خو تر کومه ځايه چې نوموړي عمليات د هېوادوالو په روحياتو ، جذباتو او ديني - ملي هيلو پورې اړه لري او يا پر نړيوالو څومره اغېز ښندلای شي نو کولای شو ځينې حقايق وموموچې تر ټولو مهم يې دغه لاندې ټکي دي :

۱ - دغو عملياتو بهرنيانو ته وښوده چې افغانستان لا هم د دوی استوګنې ته نه دی چمتو او دا چې مجاهدين کولای شي په هر ځای کې تر دوی پورې ځان ورسوي .

۲ - عملاً يې د زرګونو ملکي بهرنيانو کډې بار کړې چې د لس ګونو خيريه مؤسسو ، سوداګري او امنيتي شرکتونو ، ښوونيزو ادارو ، رسټورانټونو او مېلمستونونو په نوم يې په کابل او نورو سترو ښارو کې ډېره اچولې او په سلګونو افغانان نارينه او ښځينه يې ځان سره لګيا کړي ؤ . چې دا دی اوس ټول ښارونه ترې پاکېدنکي دي . نوموړې بهرنۍ ځالې که څه هم يو شمېر افغانانو ته د معاش څه ذريعې ګڼل کېدې خو فسادونه او زموږ د هېواد پر دين او ملي کلتور يې ناوړه اغېزې زښته ډېرې وې . تر دې چې زموږ د ښارونو بڼې يې بالکل اړولې او ښايي په راتلونکې وخت کې يې نور بد نتايج هم راڅرګند شي .

۳ - دغو عملياتو بهرنيان زموږ د هېواد په هکله له راتلونکې ناهيلي کړل نو کېدای شي دوی فکر وکړي چې لږ تر لږه دې هېواد ته يوه پېړۍ نور هم شاه وراړوي . ځکه دا ورته څرګنده شوه چې افغانان د دوی له ارمانونو يا په اصطلاح ديموکراتيکو ارزښتونو سره يې خورا بد حساسيت لري .

۴ - د کابل بريدونو دا هم وښوده چې پر بهرنيانو باندې حملې کول د کورنيو مرکزونو په نسبت سلګونه ځله زيات اغېزناک دي . ځکه اصلاً زموږ هېوادوالو کې د فساد اچولو اساسي جرړه همدغه بهرنيان او د هغو په لاس ځينو کورنيو ډلو ټپلو ته چمتو شوي رشوتونه دي چې په دې ولس کې د ناکرارۍ ، جنګ جګړو او قومي يا ژبنيو شخړو لامل ګرځي .

۵ - څرنګه چې دغو بريدونو په نړيواله ميډيا کې ډېره لويه انګازه درلوده نو دا يې ثابته کړه چې د مجاهدينو له خوښې پرته حکومت کول ناشوني دي . له بلې خوا مجاهدينو هم دا واقعيت په خپلو سترګو وليد چې د مرکز او اطرافو عمليات د ځمکې او اسمان توپير سره لري ځکه د مرکزيو کوچنی بريد هم له مېډيا پټ نه پاتېږي خو په اطرافو او لرې پرتو سيمو کې ډېرې سترې پېښې هم له نړيوالو پټې وي . په مېډيا کې د دغسې رپوټونو خپرېدل په کور دننه او بهر د حکومت په هکله د خلکو نظر بدلولای او يو په لسه يې پرې بې باوره کولای شي . خو که چېرې په کليو او بانډو کې ډېرې سترې جګړې هم وشي او حکومت يا د حکومت له خوا عام ولس ته ډېره مرګ ژوبله هم ورسيږي او ميډيا پرې خبره نه

شي نو بيا هيڅ ارزښت نه لري . نو له دي امله مجاهدينو ته لازمه ده چې په دې هکله خپلو نظامي پلانونو کې تر ممکنه حده سمون راولي او خپل ټول ځواک د هېواد په مرکز او لويو ښارو کې په کار واچوي . تر څو په دې ډول وکولای شي حکومت او نړيوال خپلو پاليسيو بدلولو او سملو ته اړ باسي. په دې هکله يوه بله ضروري خبره دا هم ده چې بايد مجاهدين تر وروستی کچې د حکومت له خوا د خلکو د نيولو ، ځورولو ، بندي کولو او وژلو مکمل ارقام راټول او په ډېر اهتمام سره تر عمومي رسنيو ورسوي . او دا ځکه چې حکومت هم ډېره هڅه کوي څو هېوادوالو او نړيوالو ته وښيي چې همدا مجاهدين دي چې ولس ته يې ستونزې جوړې کړې دي.

٦- په مرکزي اوحساسو سيمو په عملياتو کې يوه بله ګټه دا هم ده چې په دې ډول عام خلک ډېر نه ځوريږي ځکه په مهمو پوځي علاقو کې د دښمن د افرادو ګڼه ګوڼه زياته ده . او همدا لامل ؤ چې د عام ولس له خوا تر ډېره بريده د کابل د وروستيو حملو ملاتړ وشو . او د ملاتړ مهمه وجه يې همدا وه چې زموږ زياتره ولس په دې قانع دی چې د بهرنيانو دغه ځالي له سلګونو فسادونو ډکې دي .

## دسهار دلمانځه اووه ګټې:

لومړی: دسهار لمونځ دټولي شپې له قيام سره برابر ده،رسول الله صلي الله عليه و سلم وايي :

من صلى العشاء في جماعة فكانما قام نصف الليل ومن صلى الصبح في جماعة فكانما قام الليل كله ) رواه مسلم .يعني څوک چې دماخوستن لمونځ په جمعه سره وکړي نوګواکي نيمه شپه قيام او عبادت يې وکړ اوچې دسهارلمونځ په جمعه سره وکړي نو ګواکي ټوله شپه يې عبادت وکړ .

دويمه : څوک چې دسهارلمونځ وکړي نو دا کس د الله په ذمه او ساتنه کې دی، رسول الله صلي الله عليه وسلم ويي : من صلى الصبح فهو في ذمة الله ، رواه مسلم

دريمه : دسهار لمونځ په اخرت کې دنور او رڼا لامل ګرځي رسول الله صلي الله عليه وسلم وايي : بشر المشائين فى الظلم إلى المساجد بالنور التام يوم القيامة ، يعني دشپي په تياره کې جومات ته تلونکوته داخرت په ورځ دپوره رڼا زيرئ ورکړه.

څلرمه : څوک چې د سهار لمونځ په جمعه سره کوي هغه به جنت ته ننوځي رسول الله صلي الله عليه وسلم وايي : من صلى البردين دخل الجنة- والبردين هما الفجر و العصر ، يعني څوک چې د دوو يخو وختونولمونځ وکړي جنت ته به ځي اودا دواړه د مازديګر او سهار وختونه دي

پنځمه : دسهار دوه رکعته لمونځ له ټولي دنيا او په دنيا کې چې څه دي ښه دي ، رسول الله صلي الله عليه وسلم وايي : ركعتا الفجر خير من الدنيا وما فيها ) رواه الترمذى.

شپږمه : دسهارپه لمانځه سره دبنده له لوري الله جل جلاله ته غوره معلومات ور وړل شي ، رسول الله صلي الله عليه وسلم وايي : يتعاقبون فيكم ملائكة بالليل وملائكة بالنهار ويجتمعون فى صلاة العصر وصلاة الفجر ثم يعرج الذين باتوا فيكم فيسألهم وهو أعلم بهم كيف تركتم عبادى فيقولون تركناهم وهم يصلون وأتيناهم وهم يصلون رواه البخارى . تاسوته دشپي او ورځط ملايکي ځي او راځي اودمازديګر او سهارپه لمنځونوکې يوځای کيږي کوموملايکوچې له تاسو سره شپه تيره کړې وي هغه دسهارپه مهال پورته ځي الله دخپلو بندګانوپه حال ښه خبر دی خو بيا هم له دوی نه پوښتنه کوي چې زما بندګان موپه څه حال پريښودل ؟ دوی ورته وايي : موږ دوی دلمانځه کولوپه حالت کې پريښودل او چې ورتلوهم دوی لمنځونه کول.

اوومه : داچې څوک دسهار لمونځ په جمعه سره وکړي په روزي کې به يې الله برکت واچوي ، رسول الله صلي الله عليه وسلم وايي:

اللهم بارك لأمتى فى بكورها . رواه الترمذى يعني خدايه ! زما دامتيانو دسهار په مهال کې برکت واچوه.

# رسانه ها:

## پرقدرت ترین ماشین جنبی امریکا علیه اسلام

کریم-ق

در آغاز قرن بیست و یکم، بیشتر توجه سیاست خارجی امریکا بر تمویل رسانه ها تمرکز پیدا کرد، و سرمایه گذاری های زیادی در این عرصه صورت گرفت. تمرکز این سیاست پس از حوادث 11 سپتامبر توأم با حملات نظامی امریکا به افغانستان و عراق که منجر به برانگیخته شدن احساسات ضد امریکایی در افکار عمومی جهان اسلام و وخیم شدن وجهه ایالات متحده در جهان گردید، بالا گرفت.

بدین سان ایالات متحده امریکا مجدداً به اهمیت دیپلماسی عمومی با استفاده از رسانه ها به عنوان یکی از عناصر اصلی قدرت نرم در حفظ امنیت ملی و وجهه خود پی برد. زیرا ایالات متحده امریکا با این سیاست اش خواست ذهنیت جهانیان را در توجیه حملات نظامی بر افغانستان و عراق مطابق خواست خودش جهت دهد، تا جهانیان را از این طریق متقاعد سازد که اسلام دین خطر ناکی می باشد که برای مهار نمودن آن باید اقداماتی عملی انجام شود. بر پایه همین سیاست امریکا بر علاوه جنگ گرم(عملیات نظامی) جنگ نرم رسانه ای را در دستور کار خود قرار داد و از شیوه های مختلف و نامشروع رسانه ای مانند: دروغ، تهمت، توهین و تحقیر علیه اسلام و مسلمانان را آغاز کرد. چنانچه رسانه های امریکایی با ساخت فیلم‌هایی شبیه فتنه، چاپ کاریکاتور و توهین بر مقدسات مسلمانان خواست که روحیه اسلام ستیزی را برای جهانیان ترویج نمایند، تا جهانیان حملات نظامی و اشغالگری امریکا در جهان اسلام را قابل توجیه بدانند.



### کاربرد رسانه ها:

رسانه ها کارکردی دو سویه دارند، مانند این که می شود از آن به عنوان فلاح و رستگاری ملت ها بهره برداری نمود، و یا هم می توان آن را با سلطه گرایی و به بردگی گرفتن ملت ها به عنوان ابزارِ قدرت سیاسی، اقتصادی، نظامی و حتی فرهنگی استفاده نمود؛ که از این رهگذرایالات متحده امریکا با تمویل بزرگترین غول های رسانه ای بیشترین نفع را جهت اسارت افکار عمومی ملت ها می برد. بنابراین به جرئت می توان گفت که حفظ و گسترش قدرت استعماری نوین امریکا امروزه وابسته به رسانه ها می باشد؛ زیرا رسانه های محدود، قدرت نامحدود را برای امریکا میسر ساخته است. چنانچه تام ایدکنس می گوید: «بمب‌ها، طیارات، تانک‌ها و تجهیزات تخنیکی دیگر در درجه دوم اهمیت برای جنگ علیه تروریسم اند. ترسناک ترین و پرقدرترین اسلحه در زرادخانه امریکا کدام است؟ رسانه های ما«.

همچنان کلدرون از زبان سخنگوی اداره انکشافی ایالات متحده امریکا (USAID)می نویسد: «با درک نقش برازنده ای که رسانه ها در جامعه ایفا می کنند، اداره

انکشافی ایالات متحده امریکا و وزارت امور خارجه، در ابتدای حمله بر افغانستان، حدود 166 میلیون دالر را برای رشد رسانه های افغانی تخصیص داده بود.»

امریکا باوجود داشتن بزرگترین زرادخانه تسلیحاتی و نظامی جهت هراسانیدن ملت های جهان، اما بیشترین بهره را از سلاح مدرن رسانه ای می برد. زیرا ایالات متحده هر زمانی که قصد دست‌اندازی بر منافع ملت ها جهت استعمار را در سر داشته باشد، ابتدا با گسیل نمودن شبکه های گسترده تبلیغاتی دست می یازد. چنانچه امریکا این کار را عملاً بعد از اشغال افغانستان و عراق انجام داد. امریکا بعد از حمله بر افغانستان و عراق با فشار آوردن روز افزون توانست که بزرگترین شبکه تبلیغاتی اش(تلویزیون صدای امریکا) را که به زبان های ملی این کشورها نشرات پخش می نماید، از طریق تلویزیون های ملی افغانستان و عراق بیشتر اهداف و آرزوهای نامشروع اش را انعکاس دهد. علاوه بر آن امریکا از رادیو های مانند:"رادیو صدای آزادی، رادیو بیان رسانه های محلی... با شعارهای آزادی بیان، دموکراسی، زمینه ذهنی را برای تجاوز و اسارت بیشتر این ملت ها فرهم نمود. با این وجود ایالات متحده امریکا دریافته است که یکی از موثرترین ابزار جهت شستشوی مغزی افکار عمومی ملت ها وکسب استعمار نوین، استفاده از رسانه ها می باشد. به همین منظور سازمان جاسوسی امریکا (CIA) در سال 1950 «رادیو اروپای آزاد» را راه اندازی نمود که تا امروز تحت عنوان "رادیو صدای آزادی" در ده ها کشور و منجمله افغانستان نشرات و تبلیغات زهرآگین دارد.

علاوه بر این، ایالات متحده امریکا، برای نخستین بار در سال1991 و در جنگ اول خلیج، شبکه تلویزیونی CNN را به هدف جهان کشایی اش به کار بست. چنانچه اریک مارگولس در مقاله ای تحت عنوان «کاربرد رسانه ها به مثابه اسلحه»، که در سال 2001 در «تورنتو ستار» منتشر شد، چنین می نویسد: «واشنگتن برنامه داشت، موفقیتی را که با انحصار، فلتر و شکل دهی تمامی اخبار از عملیات های نظامی اش در جنگ خلیج (1991) علیه عراق بهره مند شده بود، در افغانستان تکرار نماید. تا امروز تعداد عراقی های کشته شده در بمباردمان‌های امریکا منحیث یک راز باقی مانده است.» همچنین تونی شوارتز(Tony Schwartz) ، نویسنده دیگر امریکایی و متخصص اعلانات تلویزیونی، در کتابی تحت عنوان «رسانه ها خدای دوم» می نویسد: «خداگونه، یک رسانه با هدایت توجه میلیون‌ها تن به یک واقعه و به صورت هماهنگ می تواند مسیر جنگ را تغییر دهد؛ یک رئیس جمهور و یا پادشاه را وزیر سازد، خوار و زبون را بالا کشد و پرافتخار را تحقیر کند«.

بنابر این، نقش عمده رسانه ها، در سال 1983 حدود50 شرکت خصوصی در امریکا مالکیت رسانه ها را در چنگ داشتند، ولی در سال2004 این رقم فقط به پنج شرکت کاهش یافت؛ این بدان معناست که رسانه ها بیشتر از پیش انحصاری شده اند.

پروفیسور نورمن سالومن در کتاب "حمله به عراق" می نویسند:هر باری که پیشنهاد می کنم گزارشی از تاثیرات مرگبار تحریم ها بر مردم عادی و بینوای عراق تهیه کنم، رؤسایم می گویند که این خبرها کهنه شده اند. در حالی که خود آنان هیچگاه از پرداختن مجدد به اخبار مربوط به فساد و ستمکاری مسئولان عراقی خسته نمی شوند.» همچنان پروفیسور نوام چامسکی، اندیشمند معروف امریکایی که در باره شیوه های تبلیغات رسانه های امریکایی تحقیقات عمیقی نموده است، می گوید: «عنصر اصلی هدایت جامعه عبارت است از انحراف توجه مردم از مشکلات اساسی و تصمیمات محافل سیاسی و اقتصادی از طریق اشباع دایمی فضای جامعه با اخبار و اطلاعات مربوط به مسایل کم اهمیت اجتماعی می باشد. روش انحراف اذهان عمومی جامعه از این جهت بسیار حایز اهمیت است که امکان کسب آگاهی های جدی در عرصه های علوم، اقتصاد... را از مردم جامعه سلب می کند.» با این حال غول‌های رسانه ای در امریکا و

سایر کشورهای بزرگ استعماری یکی از ابزار های اند که این کشورها به عنوان وسیله موثر عصر جدید از آن بهره می برند.

از جانب دیگر، این رسانه ها توسط شاهرگ های اقتصادی و شرکت های بزرگ استعماری مانند کارخانه های اسلحه سازی و شرکت های نفتی نیز تمویل می گردند. پروفیسور نورمن سالومن، محقق امریکایی در کتاب "شما همیشه دروغ گفته اید"، از شش شرکت بزرگ امریکایی یاد نموده که در واقعا این شش شرکت افکار عمومی را در جهان با زیر پوشش قراردادن رسانه ها در اختیار دارند، و به هر سمتی که خواسته باشند افکار مردم را مطابق منافع اقتصادی خود سوق می دهند؛ که یکی از آن شش شرکت عبارت از "نیوز کارپوریشن" است که مربوط به روبرت مرداک(Rupert Murdoch) می باشد. این شرکت شبکه های متعدد تلویزیونی، رادیویی، روزنامه ها و مجلات را در سراسر جهان در اختیار دارد. امپراتوری رسانه ای او حجم وسیع اطلاعات را در انحصار داشته و با دقت تمام افکار عمومی ملت ها را منحرف ساخته طوری جهت می دهد که بر منافع اقتصادی و سیاسی اش موثر بوده باشد. چنانچه "موبی گروپ" یکی از شاخه های آن می باشد که شبکه های تلویزیون طلوع، طلوع نیوز، لمر، رادیو ارکوزیا و رادیو آرمان را در افغانستان تحت پوشش خود قرار داده که این شبکه های نشراتی بیشتر برنامه های را به پیش می سپارند که در تبانی با اهداف غرب، به ویژه ایالات متحده امریکا باشد. به هر صورت گفته می شود که بیش از 30% سهم دار "موبی گروپ" روبرت مرداک، مالک شرکت بزرگ "نیوز کار پوریشن" می باشد. به همین دلیل است که تلویزیون طلوع، طلوع نیوز و رادیو آرمان بیش از هر رسانه دیگر در افغانستان به بازوی تبلیغاتی امریکا مبدل شده است که مستقیماً از سوی سفارت امریکا در کابل و اداره انکشافی ایالات متحده امریکا نیز تمویل می گردد.



بنابراین، در کشوری که تمام اخبارش را کالاهای تجارتی آن هم کالاهای وارداتی تشکیل دهد، برعلاوه دروغ و ریا بر فضای رسانه ای اش سایه افگنده باشد، چگونه ممکن است که در آن کشور دم از آزادی رسانه ها و آزادی بیان زده شود؟ بدین اساس آنچه را که غرب، به ویژه امریکا از آن به عنوان کشنده ترین سلاح جهت پیشبرد اهدافش استفاده می نماید رسانه ها می باشد. بناً رسانه ها موثرترین ابزاری می باشند که امریکا در اشغال کشورها به خصوص افغانستان وعراق جهت وارونه جلوه دادن اهداف اصلی استعماری اش به اهداف کمک و توسعه در واقع افکار عامه را به جهت دیگری سوق داده است. چنانچه امریکا این اعمال را پس از حمله وحشیانه اش به افغانستان و عراق انجام داد. امریکا در این حملات هیچ نوع ظلم، شکنجه، قتل و توهین بر مسلمانان وحتی مقدسات شان نبود که انجام نداده باشد؛ و این حقیقت را می توان در نشر گزارشی مبنی بر شکنجه غیر انسانی سازمان استخبارتی امریکا "سیا" مشاهده نمود. هر چند این گزارش تمام واقعیت قساوت و بی رحمی سیا را بازگو نکرده است، با آن هم می توان بر بخش از آن در این افشا گری پی برد، که دموکراسی امریکایی چه جنایاتی را در حق ملت ها، به ویژه مسلمانان روا می دارد. بدین اساس پرسش اساسی در ذهن انسان خطور می کند مبنی بر این که چرا واقعیت های این همه جنایات سازمان جهنمی "سیا" در طی سیزده سال تجاوز، ظلم و شکنجه این سازمان توسط رسانه های غربی انعکاس داده نشده است؟ پرسشِ که پاسخش را می توان در دست داشتن قدرت استعماری امریکا در تمویل ابزاری نوین(رسانه ها) در سرزمین های مورد اشغال امریکا دریافت نمود.



# جګړې به لا زورونه واخلي

ليکوال : عبدالغفار غريب

خلک اوبه وروړي پرې اور وژني
موږ وال پرې تېل پاشي لا نور وژني

د اورېدو له قراره وايي چې د بر کلي او کوز کلي ملکان د خان صاحب په بلنه او هڅونه بيا سره کېناستلي او غواړي چې دا ځل دواړو کليو کې د خان صاحب مخالفين په ګډه سره وځپي . ځکه خان صاحب دواړو ملکانو ته ويلي چې مخالفين يې سهار بر او بېګا کوز کلي کې په يوه ټغر سره ناست وي . مانا دا چې د دواړو کليو خپلو کې ډېر سره خواره خو د خان صاحب او هغه د دواړو ملګرو ملکانو سخت دښمنان دي .



له همدې امله دا ځل خان صاحب وړانديز کړی چې دواړه ملکان به يو له يوې خوا ، بل له بلې او خان صاحب له پاسه پر دغه ژنکيو بريد کوي او ځان به ترې خلاصوي . که څه هم کلونه وشول چې دا جګړې روانې دي او خان صاحب لا ډېر پخوا ځان پرې ستومانه کړی ، په کورو کې يې وويشتل ، جوماتو ، مدرسو ، غر او سمه هيڅېرې يې نه دي پرېښي خو د کلي خلک چېرې کمېږي د يوه په وژلو لس نور پيدا کيږي . د کلي سپين ږيرو دواړو ملکانو ته ډېر وويل چې وه ملک صاحب دا ژنکي به تاسې سره جوړ او پخلا کړو خو تاسې هم دومره مهرباني وکړئ چې د خان صاحب پښو ته يې مه رغړوئ . خان که ډېر زورور او وسي هم دی خو د ځان دی ، زموږ او تاسې په کيسه کې نه دی خو ملکان دواړه د خان له خبرې نه تيرېږي .

دوی ته خان ويلي چې که ما سره انډيوالي کوئ نو له هغه چا سره به راشه درشه نه کوئ چې زما خاني نه مني . ملکان هم چې دواړه سخت رشوت خواره دي ، د خان له فرمايش سره سم لګيا دي هغه کسان کور په کور لټوي چې ان په غياب کې يې د خان په هکله تندی تروش کړی وي . خان وايي دا ډول خلک به

هیڅچېرې نه پرېږدم دوی د کلي کور په ګوزران او عرف عالم نه پوهیږي ، ځانونه ډېر پرهېزګاره بولي او زموږ د عام رسم و رواج زغم نه لري . خو اوس دې خدای خیر پېښ کړي . ځکه له یوې خوا دواړو کلیو کې د خان دښمنان ډېر شوي او له بلې خوا دواړو ملکانو او خان هم خپلو کې لاسونه سره یو کړي او جګړو ته نور هم زور ورکول غواړي . دغو جګړو دواړه کلي تباه کړي ، په زرهاو او لکونو خلک یې له منځه وړي او غټه تبایي ترې جوړه شوې خو د روغې څرک لا نه لګیږي .

خان صاحب لا هم پر خپله دعوا ټینګ دی وایي خو چې زه یې نه یم منلی ، که هر څومره تبایي منځ ته راځي ، راځي دې ، زما یې پرې څه ، که د ملکانو د کاله مري او که نور . زه به یې ننداره کوم ځکه ما خو ملکانو ته دومره څه ورکړي او لا ورکوم یې چې روانه جګړه پرې غځولای شي . دا مهال د کلیو تجربه کار وګړي اټکل کوي چې که دواړه ملکان خپلو خلکو سره جوړ نه شي نو یقیني ده چې غټه تبایي به راشي . دوی وایي شخړې او دښمنۍ هځکله په جګړو نه ختمیږي ، بلکې د حل لار یې ایکي یوازې جرګې او مرکې دي . نو که د دغو کلیو ملکان د خپل سر خیر او د کلیوالو خوشالي او سوکالي غواړي نو د خان په لمسونه دې نه غولیږي او هغه رشوتونه دې نه ترې اخلي چې صرف د جګړې اوږدولو په موخه یې ورکوي ځکه د سولې په راتلو جګړه ختمیږي او چې جګړه نه وي نو د جنګیالیو لګښت ته اړتیا نه پیښیږي . په دې ډول به هم د خان له غلامۍ وژغورل شي او هم به یې په کلي کې روانه اله ګوله پای ته ورسیږي . خو دوی یې نه مني ، جګړه اوږدول غواړي ، په زرهاوو نور کلیوال وژني تر څو په دې توګه د خوابدۍ او دښمنۍ په اور باندې لا هم تیل وشیندي او روانه جګړه پېړیو ته وغځوي . راځئ په دې خبره د ټولو سر خلاص کړو .



# د مور مینه

پرون شپه مې خوب لیده چې مړ شوی یم.
لومړی ورځ یوه پرښته راغله او راته وې ویل:
څه غواړې ؟
ورته ومې ویل : اوبه.
وې ویل : لاړ شه هغې غونډۍ ته وخېژه او اوبه وڅښه ، کله چې هلته لاړم په یوې سترې چینې مې سترګې ولګېدې ، له هغې چینې څخه مې په مړه خېټه اوبه وڅښلې.
دریمه ورځ بیا هغه پرښته راغله او وې ویل : نن څه غواړې؟ بیا مې وویل : اوبه.
هغې وویل : لاړ شه هغې غونډۍ ته وخېژه او اوبه وڅښه ، کله چې لاړم ، ګورم چې چینه ډېره کوچنۍ شوې ده ، په مړه خېټه مې ترې اوبه وڅښلې.
اوومه ورځ بیا نو مورې پرښته راغله او وې ویل : څه غواړې ؟ بیا مې وویل : اوبه.
هغې بیا وویل : لاړ شه هغې غونډۍ ته وخېژه او اوبه وڅښه ، کله چې هغه ځای ته ورسېدم ګورم ، چې د اوبو څاڅکي ډېر کم شوي دي ، بېرته را وګرځېدم او له هغې څخه مې وپوښتل: دا ولې ؟
هغې په ځواب کې وویل : لومړی ورځ ټولو دوستانو ، د کورنۍ غړو ، قوم ، مور او خپل خپلوانو دې ستا له پاره اوښکې تویې کړې ، دریمه ورځ یوازې ملګرو او مور دې ستا له پاره اوښکې تویې کړې ، اوومه ورځ هم یوازې ملګرو او مور دې ستا له پاره اوښکې تویې کړې ، مګر څلوېښتمه ورځ یوازې او یوازې مور دې وه چې ستا له پاره یې اوښکې تویولې ، دا څاڅکي ستا د مور اوښکې دي ، چې د تل له پاره تویېږي.
کله چې را ویښ شوم ، نو د خپلې مور پښې مې ښکل کړې او پوه شوم ، چې د مور مینه تل پاتې ده

# گرگ هایی که در افغانستان مصونیت قضایی دارند

بازرسان کمیته اطلاعات سنای آمریکا روز سه‌شنبه (18 ماه قوس) پس از 5 سال کار مداوم، گزارشی 6700 صفحه‌ای از شکنجه‌های سازمان اطلاعات مرکزی در سال‌های پس از حمله به برج های دوقلوی نیویورک منتشر کردند.

در این گزارش به روش‌های خشن و گهگاه غیراخلاقی شکنجه مظنونین تروریستی اشاره شده است؛ تهدید به کشتن مادر و فرزندان، تنقیه اجباری و تهدید به تجاوز جنسی از جمله این روش‌های خشن بازجویی بوده‌اند.

محتوای این گزارش درباره انواع شکنجه‌ها و حتی مرگ کسانی است که به اشتباه بازداشت شده بودند یا اگر بهتر بگوییم این گزارش شرح حال آن عده از هموطنانی است که در مقابل خواسته های نامشروع آمریکا در افغانستان ایستادگی کردند و به جرم نامعلوم سالهای سال در زندانهای گوانتانامو و بگرام بدون تفهیم جرمشان مورد شکنجه های وحشیانه ی آمریکایی قرار گرفتند که اکنون در کشور ما دارای مصونیت قضایی هم می باشند.

بنا به گفته ی یک وکیل، زندانیان مورد اشاره در گزارش شکنجه‌های سیا، از زندان پایگاه هوایی بگرام به زندان‌های تحت نظر دولت کابل منتقل شده‌اند تا گواهی باشد برای کسانی که برای بستن پیمان امنیتی با آمریکا سر از پا نمی شناختند.

سی ان ان در گزارشی به بررسی تکان دهنده‌ترین روش‌های شکنجه توسط ماموران سازمان سیا پرداخته که بخشی از آن نیز در گزارش مذکور کمیته اطلاعات سنای آمریکا اشاره شده است به شرح ذیل:

سازمان سیا در چند مورد اعدام ساختگی انجام داده است. این یکی از روش هایی است که ماموران سیا در بازجویی از آن استفاده کرده است. اعدام ساختگی شامل بخشی است که روش هایی مثل تحت فشار قراردادن زندانی با دمیدن دود سیگار در صورت او استفاده از آب سرد را شامل می شود.

دومین روش که بسیار سخت و خشن بوده شامل این بوده که ماموران سیا به سلول زندانی با سرعت یورش برده و وی را برهنه کرده و وی را در یک سالن طولانی بالا و پایین می بردند و در عین حال او را مورد ضرب و شتم قرار می دهند. در حالی که زندانی به علت دفعات زیادی که در طول این سالن برده می شده روی زمین می افتاد همین طور روی خاک کشیده می شده است.

سومین روش شکنجه ماموران سیا محروم کردن از خواب بوده است که شامل بیدار نگه داشتن یک زندانی به مدت 180 ساعت می شده است. ماموران سیا معمولا زندانی را در حالت ایستاده یا در مکان های پراسترس قرار می داده اند و دستان وی را با دستبند بالای سر او می بستند. چهارمین روش ماموران سیا در شکنجه و بازجویی غرق مصنوعی بوده است .

پنجمین روش شکنجه سیا نگهداری زندانیان در مکان های کاملا تاریک و صرف بدترین غذاها در بدترین شرایط اب و هوایی بوده است به نحوی که حتی دسترسی به تشناب (دستشویی) نداشته اند.

ششمین روش برای شکنجه از سوی سیا تهدید خانواده های بازداشت شدگان بوده است. گزارش کمیته اطلاعات سنا نشان می دهد که این روش با هدف نگران کردن زندانی از وضعیت آرامش و آسایش خانواده وی بوده تا ماموران سیا به اهداف خود برسند .

هفتمین مورد نگه داشتن بیش از 54 ساعت به حالت ایستاده بوده که زندانی از خوابیدن نیز محروم بوده است. در این روش پاها به قدری متورم می شده که زندانی نیاز به رقیق کننده خون پیدا می کرده است.

مورد هشتم از شکنجه های اشاره شده در این گزارش این بوده که ماموران سیا اقدام به آبرسانی از مقعد به این زندانیان کرده اند بدون اینکه این کار لزوم پزشکی داشته باشد.

نهمین مورد این است که ماموران سیا که در برنامه بازجویی های پیشرفته نقش داشته اند همواره از گرگ صفت ترین افراد نبوده اند و این گروه شامل افرادی نیز بوده است که در بازجویی های نامناسب از زندانی ها نقش داشته اند یا با مسایلی که موجب خشم در محیط کار شده روبرو بوده اند یا حتی اذعان به تجاوز جنسی کرده اند.

و این خصوصیات گرگ صفتانی است که امروزه در کشور ما مصونیت قضایی دارند.

يو مجاهد چې په سمه توګه اعداد کړی وي د نورو ګټو ترڅنګ دا فائده هم لري چې ترډیره حده د بیت المال د ضیاع مخه پرې نیول کیږي.

کوم مسلمان چې غواړي د مستضعفو مسلمانانو نصرت وکړي، د اسلام خدمت وکړي، له کفارو څخه د خپلو مقدساتو د توهین غچ واخلي په هغه باندې لازمه ده چې جهادي اعداد وکړي.

د جهادي اعداد دنیوي ګټې ډیرې دي، اسلامي امت په جهادي اعداد له نور زوال څخه ځان ساتلای شي او کولای شي چې خپل له لاسه ورکړی عظمت بیرته د جهادي اعداد په برکت لاسته راوړي.

په جهادي اعداد مونږ له خپلې عقیدې، ځان، مال او عزت څخه دفاع کولای شو. او په مونږ کې د دفاع ورتیا پیدا کوي، مونږ ته په نړۍ کې د ازاد ژوند نعمت راپه برخه کوي.

د افغانستان اسلامي امارت باید جهادي اعداد ته د مبارزې په هر ډګر کې ځانګړې توجه وکړي، هغه که فکري یا سیاسي ډګر وي او که نظامي، علمي، اقتصادي او یا نور ډګرونه. د اعداد په برکت کولای شي چې د تېرو دیارلسو کلونو فتوحات او سوبې وساتلای شي، په اشغال او نفاق بشپړ بری ترلاسه کړي.

مونږ هغه وخت اسلامي انقلاب را وستلای او ساتلای شو چې کله مو د مبارزې په ټولو ډګرونو کې بشري قواوې خپلې شي او هم فکره مو وي، په دې معنی چې سیاست پوه مو خپل وي، دیپلومات مو خپل وي، جنرال مو خپل وي، پیلوټ مو خپل وي، ډاکټر مو خپل وي، انجنر مو خپل وي، حقوق پوه مو خپل وي، ساینس پوه مو خپل وي او اقتصاد پوه مو خپل وي، یعنې د خپلې عقیدې خلک مو وي او په خپله مو تیار کړي وي.

په اسلامي امارت د صلیبي حملې په مهال زما په یاد دي چې له مونږ نه د څلور میلو مسلکیان، د پیچر هوایي ضد توغندیو مسلکیان، پیلوټان او نور مسلکي کسان چې له بیلابیلو پخوانیو رژیمونو او خواوو څخه را ته پاتې وو، وتښتېدل او مونږ یې یوازې پرېښودو.

پوښتنه: هغه مجاهد چې جهادي اعداد او تیاري نه لري، د مبارزې په لاره کې له کومو ستونزو سره مخ کیدای شي؟

ځواب: داسې مجاهدین چې له شرعي پلوه د جهاد په اړه معلومات ونه لري داسې اعمال ترې صادرېږي چې د جهاد له اخروي ثواب څخه پرې محرومیږي. او کله کله یې په دنیا کې هم د ګرفت سبب ګرځي. د دښمن په ضد کوم مؤثر عمل نه شي ترسره کولای، دښمن دقیق نشي په نښه کولای، کله کله په خپله وسله خپل ځان یا نور ملګري ترې ولګیږي. زیاتره وخت خپل ماینونه پرې منفجر کیږي. داسې مجاهدین ډیر ژر د دښمن له لوري په لارو کې د بې احتیاطه سفر پر مهال او یا د مبایلونو د بې احتیاطه استعمال له وجې نیول کیږي. لنډه دا چې د اسې مجاهدین پخپله د نورو مجاهدینو د اوږو یو پیټی او یوه ستونزه وي.

پوښتنه: په روان وخت کې د اسلامي امارت تربیوي پروګرامونه څرنګه ارزوئ، څه باید وشي ترڅو مو ټول یا حداکثر مجاهدین له فکري او نظامي اعداد څخه برخمن شي؟

ځواب: لله الحمد د افغانستان اسلامي امارت د جهادي اعداد په ډګر کې ډیر پرمختګ کړی.

کومې نظامي زده کړې چې اسلامي امارت یې خپلو مجاهدینو ته په اوسنیو سختو او تنګو شرایطو کې په ډیره لنډه موده کې ورکوي، د نړۍ منظم حکومتونه هغه زده کړې په خپلو پر مصارفو نظامي تعلیمي مؤسسو کې د کلونو په موده کې ورکوي. خو اوسنۍ هڅې بیا هم زه کافي نه بولم او باید څو چنده شي. ځکه مونږ ډیر وخت ضائع کړی او ډیر زرین چانسونه مو له لاسه ورکړي او له ډیر پرمختللي او مجهز دښمن سره مخ یو.

پوښتنه: د روس ضد جهاد په مهال ځینو ډلو خپلو مجاهدینو ته یوازې د وسلې استعمال ورښود او فکري تربیې ته یې توجه نه کوله، شهید عبدالله عزام رحمه الله ددوی په اړه ویلي و، چې دغه مجاهدین به آخر په خپل منځي جګړه مارانو

# د اسلامي امارت د یوه جهادي تربیوي مرکز له مسئول



## ښاغلي عبدالواجد جوهر سره مرکه

مرکه کوونکی : أبوعابد

**درنو لوستونکو !**

د جهادي مبارزې په لړ کې اعداد یا تربیت یو اساسي شرط بلل کیږي، اسلامي امارت د نورو جهادي پروګرامونو د تعمیل ترڅنګ د اعداد په برخه کې هم د پام وړ فعالیتونه لري چې عام مجاهدین او په ځانګړي توګه استشهادي مجاهدینو ته د عملیاتو لپاره ځانګړې نظامي زده کړې ورکول کیږي، دا چې اعداد څه دی او څومره اړین دی په دې اړه مو د استشهادي عملیاتو له رهبري کوونکي او د معسکر له مسؤل ښاغلي عبدالواجد جوهر سره مرکه کړې چې ستاسو پام ورته راګرځوو.

**پوښتنه:** تاسو ته هرکلی او ښه راغلاست وایو که له هرڅه وړاندې زموږ لوستونکو ته ځان ورمعرفي کړئ ؟

**ځواب**

الحمدلله الذي هدانا سبيل ارهاب اعدائه الطغات والصلوة والسلام على نبى الملاحم الذى ربى فوارس واباة وبواسل وكماة وعلى آله واصحابه الذين اعدوا العدة وقارعوا اعداء الأمة وعلى من حذا بحذوهم فى الاستقامة والثبات .

**وبعد:** قال الله تعالى ( واعدوا لهم ماستطعتم من قوة و من رباط الخيل ترهبون به عدوالله وعدوكم واخرين من دونهم لاتعلمونهم الله يعلمهم )وعن عمربن الخطاب رضى الله عنه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو على المنبر يقول: الا ان القوة الرمى الا ان القوة الرمى الا ان القوة الرمى .

زه لومړی د مجلې مدیره هیئت ، کار کونکو او مینه والو ته د زړه له کومې نېکې هیلې او سلامونه وړاندې کوم.

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته .

ثانیاً د مجلې له مدیره هیئت نه مننه کوم چې ما ته یې د مسلمانانو د یوې مهمې فریضې په هکله د غږېدا او بحث موکه راکړه. له لوی الله جل جلاله څخه غواړم چې ما ته په درسته توګه ستاسې د پوښتنو د ځوابولو توفیق راکړي .

راځو ستاسې د لومړۍ پوښتنې ځواب ته :

زما نوم عبدالواجد جوهر په کابل کې د استشهادي عملیاتو یو تنظیمونکی او د الحمزه معسکر خادم .

**پوښتنه:** تاسو د مجاهدینو د تربیې په برخه کې خدمت کوئ، که د خپلو جهادي تربیوي پروګرامونو په اړه معلومات راکړئ،چې جهادي اعداد څو او کوم پړاوونه لري، دغه راز یې که د نظري او عملي نصاب په اړه هم معلومات راسره شریک کړئ ؟

**ځواب:** په عمومي ډول زموږ په معسکر کې مجاهدینو ته اعداد په دریو دورو کې سرته رسیږي : تأسیسیه دوره، متوسطه دوره او خاصه دوره .

او په دریو واړو دورو کې په شرعي برخه کې ضروري عقیدوي درسونه ، ضروري اسلامي احکام ، په ځانګړې توګه د جهاد احکام ، آداب او فضائل ، د اسلام تاریخ ، نبوي مبارک سیرت ، د قرآنکریم ترجمه او تفسیر او مبارک احادیث ورته تدریسیږي.

او په نظامي برخه کې عمومي تکتیک ، بدني ورزش ، د هر ډول خفیفه او ثقیله اسلحې او متفجره موادو تخنیک او استعمال ورته ښودل کیږي .

او امنیتي درسونه هم په نظري او هم په عملي ډول ورته ښودل کیږي .

سربیره پر دې د سیاسي او فکري پوهنې په برخه کې هم یو لړ عمومي معلومات ورکول کیږي . او په ژوندي ډول د عملیاتو د انځورولو په موخه له کمرو او نورو تخنیکي وسائلو څخه د استفادې او د مخابروي وسائلو د استعمال طریقې هم ورته تعلیمیږي .

پوښتنه : ستاسو په باور د جهادي تربیې مهم اساسات کوم دي ،هغه مجاهد چې سنگر ته ځي د کفر په وړاندې جنگیږي ، یا د مبارزې په نورو ډگرونو کې خدمت کوي ، څومره او څنگه اماده گي باید ولري ؟

ځواب : فکري او سیاسي اعداد .

اداري او اقتصادي اعداد .

نظامي امنیتي او استخباراتي اعداد .

او علمي او فرهنگې اعداد .

داد جهادي اعداد مهم اساسات دي . او کله چې یو مجاهد سنگر ته ځي باید په فکري ډول روزل شوی وي یعنې په دې پوه وي چې ولې جهاد کوي ؟ د څه لپاره جهاد کوي؟ په جهاد کې څه د اسلام له مخې مشروع او څه نامشروع دي ؟ د الله ج د نصرت د راتگ لپاره په خپل ځان کې کوم صفات پیدا کړي ؟ او د شکست له کومو اسبابو څخه ځان وساتي ؟ له خلکو سره څه ډول تعامل وکړي؟ د اسلامي امارت لایحه ورته ښودل شوې وي او په اسلامي شریعت کې د خپل شرعي امیر د اطاعت او مرتبې په مفهوم پوه کړل شوی وي.

د سنگر د ټولو سترپاوو، د زغملو لپاره چمتو وي او له بدني پلوه روزل شوی وي. د غلیم د استخباراتو له شر نه وقایه او لازمې امنیتي او استخباراتي زده کړې ورکړل شوې وي ، په ځانگړې توگه د موبایل او نورو الکترونیکي آلاتو د استعمال په خطر آگاه کړی شوای وي ، الله مکړه د اسارت په صورت کې د تحقیق د ورکولو عملي روزنه ورکول شوې وي او هم په لارو کې د سفر او د یوې مناسبې ستر او اخفأ د خپلولو طریقې ورته ښودل شوې وي.

د وسلې او چاودیدونکو موادو کارول ورته ښودل شوي وي . ضروري تکتیکي درسونه ورکړل شوي وي. یعنې په دې پوه کړل شوی وي چې پیره او گزمه به څنگه کوي ؟ . په دفاع ، کمین او تعرض کې به مختلفې دندې څنگه پر مخ وړي ؟ له زخمي سره به څنگه ابتدائي صحي مرستې کوي؟ زخمي او شهید به څنگه انتقالوي؟ او داسې نور ډیر څه باید وخت او شرایطو ته په کتو سره ورته وښودل شي .

پوښتنه : د جهادي اعداد مهمې دنیوي او اخروي گټې ستاسو په نظر کومې دي ؟

ځواب : د جهادي اعداد اخروي گټې له هیچا څخه هم پټې ندي.

جهادي اعداد یوه الهي فریضه ده چې په اړه یې په اسلامي شریعت کې صریح نصوص راغلي، ټول مسلمانان پرې مکلف دي او د مجاهدینو لپاره یې زده کړه فرض عین ده . که یو څوک یې ترسره کړي غاړه به یې خلاصه او له اخروي عقوبت سره به نه وي مخ، داعداد په وسیله یو مسلمان کولای شي ځان دنفاق په یوې څانگې له مرگ څخه وژغوري، نبي کریم صلی الله علیه وسلم قوي مسلمان ته په ضعیف او ناتوانه مسلمان باندې برتري ورکړې، قوي او روزل شوی مسلمان د کفارو پر ضد دوسله وال جهاد ثواب ترلاسه کولای شي اما ضعیف مسلمان بیا دخپل ځان ساتنه هم نشي کولای.

یو مجاهد چې کله اعداد کړی وي داسلام دښمنانو ته ډیر تلفات اړولی شي چې دشریعت له مخې نکایة في العدو یو مطلوب عمل دی.

همدغه راز یوه مجاهد چې کله نظامي روزنه ترلاسه کړې وي، هغه هدف سم ولي ، نښه نه ختا کوي داحادیثو له مخې هغه گذار چې دښمن ته ورسیږي په هغه گذار باندې ډیر فضیلت لري چې هدف ترې ختا شي.

واوړي، ځکه د دوی ټوپک زده دی، خو د ټوپک د مشروع او نامشروع استعمال فکر او علم ورسره نشته، د کمونیزم له شکست وروسته د نوموړي وړاندوینه ربښتیا وخته، په اوس وخت کې د مجاهدینو داوږدمهالي تربیې او ذهني غني سازۍ لپاره کوم اقدامات ضروري بولئ ؟

ځواب: د صلیبي اشغالګرو او د کابل د ګوډاګی خبیثې ادارې په ضد زموږ جګړه سپیڅلی جهاد دی .

د دښمن په مقابل کې سخته او اوږده جګړه په پیاوړې عقیده او انګیزه ترسره کېدای شي، په قوي عقیده او انګیزه مبارزه ، یوازې د مجاهدینو په فکري روزنه او تربیت سمسوره ساتل کیدای شي ، که د مجاهدینو فکري روزنه نه وي زموږ مزل به اوږدیږي ، انحراف او مایوسي به منځته راځي او موږ به له مشکلاتو سره مخ کیږو.

زما په فکر د مجاهدینو د فکري روزني لپاره باید اسلامي امارت لاندې اقدامات ترسره کړي:

الف : په ټولو مسؤلینو او مجاهدینو یې لازمي کړي.

ب : منهج او نصاب ورته جوړ کړي، د مجاهدینو د فکري تربیت لپاره باید یو واحد منهج او نصاب رامنځ ته کړي.

ج : دا نصاب باید په درسي ډول وي.

د : د هر ولایت علماء کرام مکلف کړي چې د ټاکل شوي منهج مطابق د مجاهدینو فکري روزنه ترسره کړي.

ه : او د مجاهدینو د فکري روزنې لپاره داسې یو طرزالعمل رامنځته شي چې په برکت یې فکري تربیت د مسؤلینو او مجاهدینو یوه لازمي دنده او یو پیاوړی معمول جوړ شي.

و : د اسلامي امارت فرهنګي کمیسون په خپلو چاپي ، غږیزو او انځوریزو خپرونو کې ځانګړی ځای ورکړي او د یو منظم پلان له مخې د مجاهدینو د فکري تربیت لپاره خپرونې وکړي.

پوښتنه: په اوس وخت کې په نظامي برخه کې زموږ اعداد یوازې دهغو وسلو د استعمال زده کړه ده، چې زموږ دښمنان یې جوړوي، متاسفانه مسلمانان په دې برخه کې خود کفاء نه دي، د جنګي ټکنالوژۍ د زده کړې لپاره عصري علوم اساسي شرط دی، په دې برخه کې خصوصا په تعلیمي برخه کې څه باید وشي؟

ځواب : زما په فکر موږ باید د مدرسو په نصاب کې هومره عصري زده کړې شاملې کړو چې زموږ د جهاد او مبارزې غوښتنو ته جواب ووایي او د عصري زده کړو لپاره او د خپلو مجاهدینو لپاره د هغو اصلي زده کړو په موخه چې موږ پرې پرمختللي عصري ټکنالوژي کارولی او ترلاسه کولای شو ، ځانګړې تعلیمي مؤسسې رامنځته کړو او که شرایط سخت وي د یوې منظمې برنامې له لارې په هیواد او سیمه کې له موجودو تعلیمي مؤسسو نه کار واخلو.

موږ باید د نظامي کمیسون او استخباراتي ارګان په تشکیلاتو کې د علم ، ټکنالوژۍ ، کشفیاتو، او اختراعاتو څانګې ولرو. ، په دې برخه کې خپل ټول بااستعداده کدرونه راټول او د یوې منظمې برنامې له مخې یې پکار واچوو او هڅه وکړو چې نظامي اړتیاوې په خپله پوره کړو او په هیواد کې هم د نابغه کدرونو استخدام ته ځانګړې توجه وکړو.

پوښتنه: تاسو پوهیږئ چې د دې دور جهادي مبارزې سختې، اوږدې او حوصله ازمویونکي دي، چې کله ناکله ځیني مجاهدین د حوصلې او عزم له ماتې سره مخ کیږي، په رواني لحاظ د مجاهدینو د عزم او مورال د لوړ ساتلو او ثابت اوسیدلو لپاره ستاسو توصیې څه دي ؟

ځواب: د روحیې او مورال ساتل د صلیب په ضد په روان جهاد کې ځانګړې پاملرنه غواړي ځکه له یوې خوا غلیمان زموږ په ضد پراخه نفسیاتي جګړه کوي او د نفسیاتي یا رواني جګړې ډیر امکانات یې په اختیار کې دي او له بل لوري مجاهدین له ډیرو محدودیتونو سره مخ دي.

د مجاهدینو روحیه او مورال د مبارزې د سختیو له وجې نه لوېږي . او دا ډیر کم پیښیږي چې د یوچا مورال دې د جګړې د سختیو له وجې ټیټ شي، ځکه د اوسني عصر مجاهدین ټول پتنګان دي او د الله جل جلاله په لاره کې د ځان فدا کولو ته ډیر

لیواله وي، خو ځینې نور عوامل دي چې د مجاهدینو مورال او روحیه ماتوي، لکه:

• د دښمن نفسیاتي جګړه او تبلیغات
• په خپل صف کې د ننه ځینې غیر شرعي اعمال
• خپلمنځي رقابتونه او د مسؤلینو غفلت

زما په فکر باید د اسلامي امارت اړونده چارواکي د مجاهدینو د مورال د لوړ ساتلو او له مایوسي څخه یې د ژغورلو لپاره لاندې ټکي په پام کې ولري:

اول: مجاهدینو ته باید تل د اسلامي شریعت له مخې د صلیبي اشغالګرو او د دوی د دوستانو او همکارانو په ضد د جهاد حکم په واضح ډول بیان شي او هیڅ ډول ابهام پکې نه وي.

دوهم: مجاهدینو ته باید د اسلامي شریعت له مخې تل دا واضحه شي چې موږ ولې په اصطلاح د ملي اردو، پولیس، امنیتیان، اربکیان، او د ګوډاګي اداري په بیلابیلو برخو کې نور کارکونکي او چارواکي وژنو، ځکه دښمن تل هڅه کوي چې داسې ذهنیت خپور کړي چې د بهرنیو قواوو له وتلو وروسته د جګړې جواز نشته اردو، پولیس او امنیت خپل افغانان دي او وژل یې ندي روا.

مجاهدین باید د شریعت له مخې په دې پوه کړل شي چې زمونږ سپیڅلی جهاد له اشغال او نفاق څخه د ازادي، د ظلم او فساد د ورکاوي او د ربښتوني اسلامي نظام د قیام لپاره ده او څوک یې چې په مخ کې خنډ کیږي د هغوی قتل واجب ده.

دریم: د صف تصفیې ته باید ځانګړې توجه وشي، مفسد، او بدنام خلک باید په صف کې پرینښودل شي ځکه د دوی په لیدو نیکان مجاهدین مایوسه کیږي او داسې فکر کوي چې زمونږ د مبارزې کومه ګټه نشته.

څلورم: په مفتوحه سیمو کې د جرایمو د مخنیوي او د خلکو تر منځ د حقوقي مسائلو د حل لپاره چې کوم مسؤلین ټاکل کیږي هغه باید باتقوا خلک وي ځکه د خیانتونو، او رشوتونو په لیدو مجاهدین مایوسه کیږي او مورال بایلي.

پنځم: د نظامي ډلګیو له منځه باید هماهنګي او ګډ کار ته لا رشد ورکړل شي. په دې برخه کې باید ډیر زیات کار وشي. ځکه د ډلګیو تر منځ سیالي او رقابتونه چې د انسانانو تر منځ یو طبیعي امر دی مجاهدین مایوسه کوي او نیکان مجاهدین بیا دا غوره ګڼي چې د رقابتونو د پاللو په ځای کرار په کور کیني.

شپږم: د دښمن په ضد د کیدونکو ټولو عملیاتو باید ژوندي انځورونه یا ویډیو ګانې واخیستل شي او ژر ژر نشر شي په دې سره د مجاهدینو روحیه ډیره لوړه ساتل کیدلای شي. او د دښمن د هغه تبلیغاتو مخه نیول کیدای شي چې څلورویشت ساعته یې د مجاهدینو د اتلولیو د پټولو لپاره ترسره کوي. او د مجاهدینو په مورال ډیره بده اثر کوي.

کله چې یو مجاهد د عملیاتو ژوندۍ ویډیو ویني د هغه احساسات نور هم راپاریږي او کله یې هم مورال نه لویږي.

اووم: د مجاهدینو لپاره باید شرعي دورې لا زیاتې شي په کمه کمه موده کې دایرې شي او په ټولو ډلګیو دا لازمه کړل شي چې خپلو ټولو مجاهدینو ته په قرارګاوو او سنګرونو کې هره ورځ اصلاحي بیانونه معمول وګرځوي.

اتم: فرهنګي کمیسون باید د مجاهدیو د مورال د لوړ ساتلو لپاره ځانګړې چاپي، غږیزې او انځوریزې برنامې ولري.

نهم: د مجاهدینو مسؤلین باید په خپل وخت تر خپله وسه د ټولو مجاهدینو اقتصادي ستونزو ته ځان ورسوي، د بندیانو غم وخوري، په یتیمانو پام وکړي ځکه چې کله کوم مسؤل د خپل یوه مجاهد پوښتنه نه کوي، د بندي، معیوب، زخمي، شهید، کونډې، او یتیم غم نه وي ورسره د داسې مسؤل د غفلت له وجې په صف کې مایوسي خپریږي او هر مجاهد داسې فکر کوي چې که په ما کومه ابتلا راشي بیا به زما هم هم داسې حال وي.

په پای کې یو ځل بیا تاسې ته نیکې هیلې وړاندې کوم او له تاسې څخه مننه کوم.

# د۲۰۱۴ کال ، ځیني نړیوالي مهمې پیښې !

ت / خلیل ـ عزیز

## کریمه :

دمارچ میاشتي په نیمایي کې دکریمه جزیرې، خلکو دخپلې نظرپوښتنې په ترځ کې ، په ډاګه کړه ، چې نور کریمه جزیره له اوکراین څخه استقلال اخلي او له روسیي سره ځان نښلوي .

هماغه و چې روسیې دکریمه دخلکو دغوښتني په اساس دغه زرخیزه جزیره په خپل قلمرو کې راوسته ، لدې سره داوکراین په نورو ولایتونو کې هم داستقلال خوځښتونه پیل شول .

غرب او اروپا ، ددغو ټولوحرکتونواوپیښو شاته دروسیې لاس په مستقیم ډول دخیل وباله اوپه وړاندې یې دکلکو اقتصادي بندیزونودعملي کولودګواښ ترڅنګ روسیه داروپایي ټولني داقتصادي ټولنواوبنسټوله مهمو غړیتوبو نوڅخه تجرید کړه ، روسیه تراوسه په خپل دریځ ولاړه ، اوان تردې چې کریمه یې خپل تاریخي قلمرو اونه بیلدونکي سیمه ګڼي، داروپا او امریکا ټول ګواښونه بې ارزښته او بې تاثیره شمیري .

## اسلامي دولت :

د۲۰۱۴ کال مهمه پیښه ، په عراق او سوریې کې دداعش دجهادي تنظیم له لوري ددولت اسلامی ، په نامه ، ظهور اودخلافت دقیام اعلان وکړ

دداعش لښکروپه ډیرلږ وخت ګڼې اومهمې سیمې ونیولې . خپلو مخالفینو ته یې درنې سزا وې ورکړې او هم یې دیوشمیرغربي اتباعو چې دوی نیولی وو سرونه ووهل .

په مقابل کې امریکا، غرب او دسیمې هیوادونو یو لوی ایتلاف جوړ کړ او په دې موخه چې دولت اسلامي به له منځه وړي ، په مراکزو یې دهوایي بمباریو تونده لړی پیل کړه ، خو تراوسه ددولت په سلطه اوولکه کې کوم تزلزل اوپرشاتګ ندی حس شوی .



## غزه:

د۲۰۱۴ کال ، غمونکي پیښه ،دجولای په میاشت کې داسرائیلي جارحینو، له لوري دغزې په مسلمانو ۲۸ ورځنی ناترسه اوبې رحمه یرغل وو ، چې د۴۷۰۰ هوایي بریدونو په ترځ کې یې دغزې ۲ زره مظلوم اوبې دفاع مسلمانان شهیدان ،۹ زره تنه یې ټپیان او غزه یې عملا په یوې مخروبې واړوله.

غزه

اسراییلي جارحیت له امریکااواسترلیا پرته ټولنې نړۍ وغانده، هماغه وو چې دمصر ـ دمنځګړیتوب په اساس دغزې یوې میاشتنی جګړه ودریده اودواړو لورو په اوربند توافق وکړ.

**ابولا:**

دمارچ ، په میاشت کې چې کله په امریکا کې دابولا مهلکه ناروغی تثبیت شوه ، دامریکایي واکمنو اونړیوالوروغتیایي ادارو دپام وړ ځکه ونه ګرځیده ، چې همدغه ناروغی په کال ۱۹۷٦ کې هم په امریکا خپل مهلک وزرونه غوړولي وو ، خو زیات زیان یې نه وو اړولی ، ولې اوسنی ابولا ، په ډیرلږ وخت کې کابو لس زره امریکایان دمرګ کومي ته وروغورځول او دغه لړی په داسې حال کې چې مخ یې نده ډب شوي ، ماهرین وایی چې نورو غربي هیوادونو ته هم په توندی روانه ده .

**مالیزیا :**

دمارچ په اتمه نیټه دمالیزیا د( ام اچ ) هوایي ایرلاینز ، الوتکه چې ۲۳۹ تنه پکې سپاره وو اویواځې ۱۵۹ تنه یې چنایي اتباع وو ، له کوالالمپور څخه دچاپان په سفر ، له لږې الوتنې ورسته درادار له لید څخه نادرکه شوه ، که څه هم دچین ، استرلیا، مالیزیا او امریکا هیوادونو په ګډه دالوتکې دموندلو اودپیښې دعلتونو په باب هلې ځلې پیل اواوس هم روانې دي ، خو بریالي شوي ندي ، دهمدې کال په جولای کې دمالیزیا یوه بله مسافر وړونکي الوتکه هم چې ۲۹۸ تنه پکې سپاره وو داوکراین په شرقي برخه کې وغورځیده ، رومبنیو تحقیقاتي پلټنو وښودله چې په نوموړې الوتکې توغندی لګیدلی وو.

**مدیترانه:**

هرکال دنړۍ له ډیرو هیوادونو څخه دبهتر ژوند دموندلو اویادجنګ جګړو څخه دخلاصون په موخه زرګونه تنه غربي هیوادونو ته په غیرې قانوني ډول اوړده اوستونزمن سفرونه ګالي اویادانساني قاچاقبرانو له لوري قاچاق کیږي ، چې پایلې یې زیاتي خطرناکي او ډیرکم خلک خپلو موخو ته رسیږي .

سږ کال هم نیږدې ۷۰۰ تنه کډوال دمدیترانې په اوبو کې دبیړیو دډوبیدلو له امله دمرګ کومي ته ولویدل ، ملګرو ملتونو دغه پیښه یوه انساني الیمه وبلله.

**پاکستان :**

داکتوبر په ۱٦ نیټه دپاکستان پوځي چارواکو اعلان وکړ ، چې دخیبرپښتونخو ا په یوه پوځي مکتب باندې ۷ تنو وسلوالو طالبانو بریدکړی او په نتیجه کې یې یونیم سل تنه شاګردان وژلی دي ، دنوموړي پیښې په غبرګون کې دپاکستان پوځ او ملکي حکومت کلک اقدامات پورته کړل ،دهغو بندیانو داعدام پریکړه یې وکړه چې دترهګرۍ په نوم دوی نیولي او عدالتونو ورته دمرګ سزاوي اوروليِ ، دراپورنو له مخې دمکتب دبرید پړه دپاکستاني طالبانو یوګروپ چې مشری یې مولوي فضل الله کوي په غاړه اخیستي ، پاکستان وایی چې فضل الله په افغانستان کې اوسي.

**افغانستان :**

ددسمبر په ۲٦ نیټه ، په افغانستان کې دامریکاپه مشری دناټو قومندانی اعلان وکړ، چې نور خپل فوځي ماموریت ته دپای ټکی ږدي اودغه دنده دکابل رژیم امنیتي قواوو ته سپاري ، دناټو قومندان جنرال کمب بیل ، وویل چې ددوی به لږ شمیر عسکر په افغانستان کې پاته وي او دهغوی دنده به دکابل دملي اردو تقویت او روزنه وي .

کارپوهان ، دناټو اوامریکا ورستی اعلان دافغانانو لپاره لویه لاسته راوړنه بولي ، ځکه دتیرو ۱۳ کلونوپه اوږدوکې

دامریکایانو په افغانستان کې نیږدې ۳۵ زره تنه عسکر مړه او ګوډو مات شول او یو تریلیون ډالر یې ولګیدل ، خو دافغانانو مقاومت او مبارزه یې خاموشه او کمزوري نشواي کړه او نه هم په افغانستان کې دیوې مستحکمې ادارې په جوړیدو وبرلاسي شول !.

**سی ای اې :**

ددسمبر په ۹ نیټه ، دامریکا څارګرې شبکې (سی ای اې ) دیوه راپورپه خپرولو سره ومنله چې دافغانستان اوعراق په ګډون یې دنړۍ په مختلفو برخو کې خپل زرهاوه مخالفین سخت شکنجه کړي او دتحقیقاتو په مهال یې له غیرې قانوني لاروڅخه استفاده کړې .

سی ای اې ، دخپلو ناروا اوغیرې انساني شکنجو او له بندیانوسره د بشریت بوږنکي تعامل علت دامریکا دوخت دولسمشر جورج ډبلیو بوش هغه فرمان بولي چې دوی ته یې دامریکایي منافعو دخوندیتوب لپاره په لاس ورکړی وو چې له بندیانو سره له هرډول بدو کړنو څخه استفاده کولای شي .

کتونکي په دې اند دي ، چې دامریکایانو له لوري په خپلو جنایتونو اعتراف، دامریکاپه مخ یوه درنه څپړه ده ، چې هیڅ ډول انساني قوانینو او بشرې نورمونو ته درناوی نلري

## د المسکي عجیبه کیسه

ابوبکر المسکي ډېر ښایسته او دینداره ځوان و، ده ته یوه ورځ چا وویل: هر وخت ستا له سر نه د مشکو خوږ بوی راځي ته څومره ډېر مشک لګوې؟ ابوبکر ورته وویل: په الله قسم ما څو کاله مشک نه دي لګولي! پوښتونکی حیران پاته شو چې نو بیا؟ ابوبکر المسکي خپله کیسه ورته بیان کړه.

ابوبکر وویل: زموږ په ګاونډ کې یوه ډېره ښایسته او شتمنه ښځه وه، هغې له مانه څو ځله د بدکاري غوښتنه وکړه او ما ونه منله، بله ورځ یې په څه پلمه کور ته وبللم چې ورغلم هغې ور بند کړ او راته ویې ویل که زما خبر راسره ونه منې زه به خلکو ته ووایم چې دی زما کورته راننوتی و او له مانه یې د بدکاري غوښتنه وکړه.

ابوبکر المسکي فکر وکړ چې اوس ګیر شوم، ښځې ته یې وویل چې ماته اجازه راکړه زه حمام ته د ځان پاکولو له پاره ځم هغې اجازه ورکړه، دی چې حمام ته ننوت په دې فکر شو چې اوس به ځان څنګه خلاصوم اخر یې په حمام کې ځان ټول په ګندګي ولاړه!! چې بهر راووت او ښځې ولید په منډه یې دروازه ورته خلاصه کړه او ورته غوسه شوه چې په منډه وځه.

ابوبکر وایې زه کورته ولاړم او ځان مې صفا کړ، د شپې مې په خوب کې یو څوک ولید راته کړه یې: تا د ځان د عفت او پاکۍ له پاره داسې اقدام کړی ده چې بل هیچا نده کړی، زه به تا ته داسې خوږ بوی درکړم چې په دنیا او اخرت دواړو کې به درسره وي. دی وایي: سهار چې راپورته شوم دا بوی راسره و او ترننه دا بوی راسره ده. او ویل کیږي چې له مرګه پورې هغه د مشکو بوی ورسره و. او له دې امله یې له نوم سره (المسکي) لیکل کیږي. (المواعظ والمجالس لابن الجوزي)

رسول الله صلی الله علیه وسلم وایي: د قیامت په ورځ به دالله د عرش له سیوري پرته هیڅ سیوری نه وي او الله به په هغه خپل سیوري کې اوو کسانو ته ځای ورکړي، (چې یو له هغو اوو نه) هغه کس دی چې ښایسته او د لوړ مقام واله ښځه یې بدکاري ته وروبولي او دی ورته ووایي زه له الله نه ویریږم. متفق علیه.

الله دې موږ او زموږ ټول ځوانان پاک او په عفت کې ولري.

# دغلیم ماتې

عتیق

ګونډو شو په ګونډو شو کل دنیا کې په ګونډو شو — د ډېرو زېرمو خوا کې په آسیا کې په ګونډو شو

پښتون قوم غیور ده افغان دې غیرتمن — په ګرد افغانستان او پکتیکا کې په ګونډو شو

جنګونه پرې شروع شو غلیم سخته وارخطا شو — په شرق او په جنوب، شمال، هر جا کې په ګونډو شو

هلمند کې ضربې ورکړې قندهار کې شو بې وار — زابل او ارزګان، غزني، پکتیا کې په ګونډو شو

وردګ، میدان، لغمان او ننګرهار کې بې دمې شو — فراه او هم هرات او کنرها کې په ګونډو شو

قندز او په تخار او په بغلان کې بې مزې شو — لوګر او نورستان او کاپیسا کې په ګونډو شو

مزار او په پروان او په فاریاب کې شو بې وسه — د غور او د بادغیس کلیو بیدیا کې په ګونډو شو

نیمروز کې نیمه خوا او بدخشان کې یې سر وخوړ — جوزجان پل خمري کوه بابا کې په ګونډو شو

پلمه القاعده وه د اسلام په ضد یې کیار وو — د خدای د دین هر ضد په ناروا کې په ګونډو شو

اسیا کې شو منفور هر مسلمان کړې ترینه کرکه — خلیج، ګرد نړۍ او اروپا کې په ګونډو شو

دنیا یې هم تباه شوه اخرت خو یې برباد وو — دښمن د پاک الله دنیا عقبی کې په ګونډو شو

شخصیت یې هم شو ړنګ اقتصاد یې هم تباه شو — ظالم هم په خپل کور او افریقا کې په ګونډو شو

ظالم چې شکست مومي مظلومان پرې خوشحالیږي — ظالم تل کم په ظلم او ناروا کې په ګونډو شو

انجام د ظالم ګوره د وطن یې قبرستان شي — انګلیس او شوروي او امریکا هم په ګونډو شو

افغان د اسیا زړه ده بريد په زړه ځا آسان نه ده — د زړه له وجه بش او اباما هم په ګونډو شو

قومونه چې بیدار شي د ظالم خونه ورانیږي — وحدت د ولسو کې هر خود خوا هم په ګونډو شو

"عتیق" وایي مظلوم قومونه ویښ دي په خوځښت شوو — تونس، مصر، یمن، او هم لیبیا کې په ګونډو شو

